


صحيح عقيدې
















مكتبة القراءة والتجويد

كانسي روډ شالدره كوئټه

د تعليم الاسلام راډيو ويب پاڼې له خوا وړاندې كېږي:
www.taleemulislam-radio.com




# يعني صحيح عقيدې





## مفتي طاهر محمود صاحب

استاذ في اشرف العلوم كورنگي


پښتو ژباړه

## محمد فضل الحق حقاني


## مَكتبة القرآت والتجويد

كاسي روډ كوئټه بلوچستان

جميع الحقوق محفوظة

جمع حقوق الملكية الادبية والفنية محفوظة لمكتبة القرائة والتجويد كوئته باكستان و يحظر طبع أو تصوير أو ترجمة أو إعادة تنضيد الكتاب كاملاً أو مجزأً أو تسجيله على أشرطة كاسيت أو إدخاله على الكمبيوتر أو برمجته على اسطوانات صوتية إلا بموافقة الناشر خطيا

Copyright ©
All rights reserved
Tous droits reserves

Exclusive rights by Maktabatul-Qiraat i waltajweed Quetta - Pakistan. No part of this publication may be translated, reproduced distributed in any form or by any means, or stored in a data base or retrieval system, without the prior written permission of the publisher.

الطبعة الثانية

١٤٢٧ هجري - ٢٠٠٦ ميلادي

مكتبة القراءة و التجويد
شارع كانسي كوئته ـ باكستان
رقم الهاتف ٢٨٨٥٥٣٥-٠٢

MAKTABTUL-QIRRAT
WALTAJWEED
KANSI ROAD QUETTA BALOCHISTAN

ISBN 2-7451-3140-0

9782745131409

د مكتبة القراءت والتجويد څخه نړۍ مننه چي تعليم الاسلام ويب پاڼي ته يې د دې كتاب د نشرولو اجازت وركړى. الله دې د خير بدله وركړي

بسم الله الرحمن الرحيم

نحمده ونصلي على رسوله الكريم

وبعد محترمو! د انسان لپاره عقيده يو لوى اهميت لري. تر داسې چې د انسان د اخرت كاميابي او بريالتوب او همدا رنګه ناكامي د عقيدې پر صحت او فساد باندې موقوفه ده. څرنګه چې زمونږ په چاپېريال كې د اولس د عامو وګړو نارينه او ښځينه وو لپاره د عقيدې په هكله هيڅ يو كتاب نه و. حتى چې زمونږ په جامعاتو كې د كښتنو درجو لپاره د عقائدو پر بنياد باندې يو ځانګړى كتاب نه و. نو مې له ډېرې مودې څخه په زړه كې و چې لږ تر لږه وسو طالب علم لره پر هغو شيانو چې د اسلام بنياد ايښودل شوى دى علم ضروري دى

او په پښتو كې مې داسې يو كتاب تر سترګو نه شو. يواځې او يواځې په تعليم الاسلام كې يوه حصه د عقائدو پر بحث باندې موجوده وه چې واقعي ډېره فائده منده وه. څه وخت چې په جامعه تجويد القرآن كې د نصاب كمېټې ذمه دارانې راوسپارل شوې، نو مې د عقائدو پر بنياد همدغه "تعليم العقائد" راغلى كوم چې د سوال او ځواب په ډېره اسانه طريقه سره ليكل شوى و. او د دې ډېرو خوبيانو سره سره دا كتاب د دار العلوم كراچي د يو جيد مفسر او محدث د روى تصنيف و. كوم چې زمونږ د علماء حصه د جماعت مشران او رهبران شمېرل كېږي. نو مې د پښتو ژباړې نيت وكړ چې الحمدلله د ژباړې او كتابت كار يې وسر ته ورسېدى. كتاب ډېر فائده لرونكى، په آسانه، سليسه او روانه پښتو كې ليكل شوى دى، هيله ده چې د وطن وګړي يې څخه د كورونو سانسه وګرځوي. او فائده ورڅخه تر لاسه كړي. او پخپلو كورونو كې يې وماشومانو، ښځو او ځوانانو ته هره ورځ يوه يوه حصه وریاد كړي

ستاسو ديني ورور محمد فضل الحق حقاني

بسم الله الرحمن الرحيم

نحمده ونصلي على رسوله الكريم

## اما بعد:

### ﴿مقدمه﴾

**سوال**: عقيده وڅه ته ويل کېږي؟

**ځواب**: د عقيدې لفظي معنا ده (غوټه کول) د دين او د مذهب سره متعلق شيان چي په زړه کي راغونډ کړل سي هغو ته عقيده ويل کېږي[1]

**سوال**: د عقيدې څه اهميت دی؟

**ځواب**: عقيده د انسان په کردار او د اعمالو په جوړولو کي يو بنسټيز حيثيت لري، ولي چي د انسان د ټولو اخلاقو او اعمالو بنياد پر ارادې باندي دی. او د ارادې اصل محرک زړه دی. او دا ښکاره خبره ده چي زړه د هغو شيانو اراده کوي کوم چي په زړه کي راسخ او را ټول سوي وي. له دې سببه د انسان د اعمالو او اخلاقو د صحيح کېدو لپاره ضروري ده چي دده په زړه کي به

(۱) قال الزبيدي في تاج العروس (عقد الحبل والبيع والعهد) عقد افانعقد (شده) والذي صرح به ائمة الاشتقاق ان اصل العقد نقيض الحل (الى قوله) ثم استعمل في التصميم والاعتقاد الجازم (فصل العين من باب الدال) ص ۴۲۶ ج۲)

صحیح عقائد وي. له همدې سببه د عقیدې صحیح کول ډېر اهمیت لري[٢]

**سوال**: دین یامذهب څه ته ویل کېږي؟

**ځواب**: دین یا مذهب په لغت کي هغه طریقې او قوانینوته ویل کېږي د کوم چي پیروي کېږي که هغه صحیح وي او که غلط[٣]

او په دیني ژبه سره دین یا مذهب د الله تعالی هغه مقرره سوې طریقه کوم چي بنده پخپل اختیار سره وکړي نو حقیقي کامیابي او خلاصوالي ته به ورسېږي[٤]

**سوال**: زموږ مذهب څه دی؟

**ځواب**: زموږ دین او مذهب اسلام دی، همدا مذهب دی کوم چي د انسان د نجات او کامیابۍ ضامن دی.

د الله تعالی په دربار کي پرته له اسلامه بل، مذهب مقبول نه دی، کوم چا چي پرته له اسلامه بل مذهب خپل کړی، هغه د دنیا او اخرت له تاوان او ناکامۍ څخه پرته د الله

---

(٢) لقوله ﷺ الا ان في الجسد مضغة اذا صلحت صلح الجسد كله واذا فسدت فسد الجسد كله الا وهی القلب (بخاری رقم الحدیث ٥٢ ١ (کتاب الایمان)

(٣) قال تعالی ﴿لکم دینکم ولی دین﴾ (الکافرون)

(٤) قال ملاجیون فی نور الانوار الدین هو وضع الهی سائق لذوی العقول باختیارهم المحمودِ الی الخیر بالذات وهو یشمل العقائد والاعمال ص ٦

تعالی د غیظ او غضب مستحق ګرځي[٥]

**سوال**: د اسلام دین څه دی؟

**ځواب**: دین اسلام د عقیدې او عمل د مجموعې نوم دی، څرنګه چې الله تعالی او د هغه رسول پر کومو شیانو د ایمان را وړلو حکم کړی دی د هغو په زړه کي یقین کول او په ژبه سره د هغه اظهار او اقرار او تابعداري کول او خپل ژوند د هغه مطابق تېرولو نوم د اسلام مذهب دی[٦]

**سوال**: ایمان او اسلام څه ته ویل کېږي؟

**ځواب**: الله تعالی او د هغه رسولﷺ چي د کومو خبرو خبر ورکړی دی هم دغه رنګه په زړه کي یقین کول او تصدیق کولو ته ایمان ویل کېږي، او د دې تصدیق او یقین په ژبه سره اظهار او اقرار کول او خپل ژوند د هغو مطابق تېرولو ته اسلام ویل کېږي.

---

(٥) قال تعالی . فمن یرد الله ان یهدیه یشرح صدره للاسلام (الانعام ١٢٥) وقال تعالی ان الدین عند الله الاسلام (آل عمران ١٩) وقال تعالی . ورضیت لکم الاسلام دینا (المائدة ٣) وقال تعالی . ومن یبتغ غیر الاسلام دینا فلن یقبل منه (آل عمران ٨٥)

(٦) وقال تعالی ان الذین آمنوا وعملوا الصالحات کانت لهم جنت الفردوس نزلا (الکهف ١٠٧) وکما ورد فی حدث جبرئیل . وقال الامام الاعظم فی الفقه الاکبر الدین اسم واقع علی الایمان والاسلام والشرع کلها (الفقه الاکبر)

لهذا ایمان هغه بنیاد دی پر کوم باندي چي د اسلام عمارت ولاړ دی، له دې څخه بغیر صرف په ژبه سره اقرار کول منافقت دی، لکه څرنګه چي د ایمان بغیر د الله تعالی په نزد نه اسلام معتبر دی، او نه د عمل صالح څه اعتبار دی[٧]

**سوال**: د مسلمان کېدو لپاره پر کومو شیانو ایمان راوړل ضروري دی؟

**ځواب**: یو وار حضرت جبرئیل علیه السلام د نبي کریم ﷺ په خدمت کي حاضر سو، او یو څو سوالونه یې د امت د تعلیم لپاره وکړه په کومو کي چي یو سوال د ایمان په باره کي وو، او نبي علیه السلام پرته له کلمه شهادت هغه بنیادي خبري بیان کړې کوم چي په ایمان مفصل کي جمع کړل سویدي. ایمان مفصل دادی.

---

(٧) کما ورد فی حدیث جبرئیل فی جواب، ما الاسلام، قال الملا علی قاری فی شرح الفقه الاکبر، قال الامام الاعظم فی کتابه الوصیة، الایمان اقرار بالسان وتصدیق بالجنان، والاقرار وحده لایکون ایمانا لانه لو کان ایمانالکان المنافقون کلهم مومنون، قال الله تعالی فی حق المنافقین، والله یشهد ان المنافقین لکاذبون، الی قوله، ثم التصدیق رکن حسن لعینه لایحتمل السقوط فی حال من الاحوال، الخ (شرح الفقه الاکبر ص ٥٧ طبع مصر)

**﴿آمنت بالله وملائکته وکتبه ورسله والیوم الآخر والقدر خیره وشره من الله تعالی والبعث بعد الموت﴾**(۸)

**ترجمة**: ما ایمان راوړی دی پر اللهﷻ باندي او د هغه پر ملائکو باندي، او د هغه پر کتابو باندي او د هغه پر رسولانو باندي او د قیامت پر ورځ باندي او پر تقدیر باندي چي هر خیر او شر د الله تعالی له لوري څخه دی او د مرګه وروسته پر بیا ژوندي کېدو باندي.

**سوال**: کفر څه شی دی؟

**ځواب**: دکو مو خبرو تصدیق او اقرار چي د ایمان لپاره ضروري دی په هغو کي د یوې خبرې انکار ته هم کفر ویل کېږي لکه یوڅوک چي له الله تعالی څخه نعوذ بالله انکار وکړي یایو پیغمبر ونه مني نو داسي چاته کافر ویل کېږي(۹)

**سوال**: شرک څه ته ویل کېږي؟

**ځواب**: د الله تعالی په ذات او صفاتو یاعباداتو کي بل څوک شریک کولو ته شرک ویل کېږي، لکه هندوان چي

---

(۸) کما ورد فی حدیث جبرئیل (الجامع الصحیح البخاري ، رقم ۵۰ . مسلم رقم ۸ ، ۱۰ ، ابو داوٗد ، رقم ۴۶۹۵ ، نسائی ، رقم ۴۹۹ ، ابن ماجه ، رقم ۶۳، ۶۴)

(۹) لقوله تعالی. والذین کفروا بآیات الله اولئک هم الخاسرون (الزمر ۶۳) ولقوله تعالی ما یجدون فی آیات الا الذین کفروا . الایة (المومنون ۴)

دپر خدايان مني، يا عيسايانُ چي هغه حضرت مريم او حضرت عيسى عليهما السلام هم خدايان بولي [۱۰] او په صفاتو کي د شرک کولو معنى دا ده. چي د الله تعالى صفات کماليه وبل چاته ثابتول لکه ديو پير يافقير په هکله دا عقيده درلودل چي هغه اولاد ورکولاى سي يا باران اور ولاى سي [۱۱] په عبادت کي د شريک کولو معنا دا ده چي له الله تعالى څخه پرته بل څوک د عبادت لائق گڼل لکه قبر ته يا يو پير ته د عبادت په طور سره سجده کول، له الله تعالى څخه ماسوا د يو پير په نامه باندي نذر کول، يا د يو نبي يا ولي پر نامه باندي روژه نيول او نور داسي [۱۲]

(۱۰) لقوله تعالى قل هو الله احد الله الصمد (الاخلاص) ولقوله تعالى حكاية عن ابراهيم ﷺ ياقوم اني برئ مماتشركون اني وجهت وجهي للذي فطرالسماوات والارض حنيفا وما انا من المشركين (انعام ۷۸)

(۱۱) لقوله تعالى. ليس كمثله شئ وهو السميع البصير (الشورى) ۱۱

(۱۲) قال تعالى، وما امروا الا ليعبدوا الها واحدا (التوبة ۳۱) وقال تعالى. فاذا ركبوا فى الفلك دعوا الله مخلصين له الدين فلما نجاهم الى البر اذاهم يشركون (العنكبوت ۶۵) وقال، ويعبدون من دون الله مالايضرهم ولاينفعهم ويقولون هولاء شفعاؤنا عند الله (يونس ۱۸)

# ﴿اول باب﴾

## پر الله تعالی باندي ایمان

**سوال:** د الله په باره کي څرنګه عقیده لرل پکار ده؟

**ځواب:** الله تعالی د هغه ذات نوم دی کوم چي یو دی او ټوله ښه ښه صفتونه په ده کي دي، په ذات، په صفاتو او په عبادت کي د ده هیڅ شریک نسته، کوم چي همېشه و، او همېشه به وي، کوم چا چي ټوله دنیا پیدا کړېده او دي چانه دی پیدا کړی، کوم چاته چي وغواړي په خپل اختیار سره یي پیدا کوي او کوم چاته چي وغواړي پخپل اختیار سره یي فنا کوي، د دنیا ټولې خبرې او کارونه د ده په اختیار او اراده سره کېږي هغه هره خبره اوري او هر شی ویني، او د هر لوی او کوچني شي علم ورسره دی، هغه وټولو ته رزق ورکوي، او کوم چاته چي وغواړي ذلت او رسوایي ورکوي، ژوند او مرګ د هغه په قبضه او اختیار کي دی[۱۳]

(۱۳) قال تعالی، والهکم اله واحد لا اله الاهو الرحمن الرحیم(بقرة ۱۶۳)، وقال، کل شیء هالک الا وجهه (القصص ۸۸) وقال، ویبقی وجه ربک ذوالجلال والاکرام (الرحمن ۲۷)، وقال: خالق کل شیء (انعام ۱۰۲)، وقال فعال لما یرید (هود ۱۰۷، البروج ۱۶)، وقال: الاله الخلق والامر (الاعراف ۵۴)، وقال لیس کمثله شیء وهو السمیع البصیر (الشوری ۱۱)، وقال وعنده مفاتح الغیب لا یعلمها الا هو (انعام ۵۹)، وقال وتعز من تشاء وتذل من تشاء بیدک الخیر انک علی کل شیء قدیر (آل عمران ۲۶)، وقال: الذي یبدؤ الخلق ثم یعیده وهو اهون علیه (الروم ۲۷)

**سوال**: آیا انسان د الله تعالی جل شانه پر ذات باندي علم رواستلای سي؟

**ځواب**: د الله تعالی جل شانه د حقیقت علم د انسان له طاقت څخه وتلې خبره ده، لوی لوی عقلمندان او د علم خاوندان هم د الله تعالی د ذات وحقیقت ته نه سي رسېدلای[۱۴].

موږ الله تعالی د ده په صفات کمالیه وو سره پېژنو[۱۵].

**سوال**: الله تعالی موجود دی لیکن بعض خلگ دا وایي چي د الله تعالی هیڅ وجود نسته، لهذا د الله ﷻ پر وجود باندي یو عقلي دلیل هم بیان کړی؟

**ځواب**: غرض دا دی چي دا یو نظام دی کوم چي د بې عیبه کیدلو علاوه ډېر منظم او اعلی دی نو دا څرنگه خود بخوده پیدا کېدلای سي، او څرنگه خود بخود چلیدلای سي.

اودا لازمه خبره ده چي دابه مثل کېږي چي دا عالم یو چا پیداکړی دی او د پیدا کېدلو وروسته په منظمه

(۱۴) قال تعالی ولا یحیطون به علما (طه ۱۱۰)

(۱۵) قال في شرح العقیدة الطحاویة ، لاتبلغه الاوهام ولاتدرکه الافهام ، (الی قوله) ، والله تعالی لایعلم کیف هو الا هو سبحانه وتعالی وانما نعرفه سبحانه بصفاته وهو انه احد صمد ، لم یلد ولم یولد ولم یکن له کفوا احد (شرح العقیدة الطحاویة)

توگه سره دا نظام چلوي همدا نظام چلونکی او عالم پیدا کونکی ذات الله تعالی دی.

د عربو له یو صحرایي څخه چا پوښتنه وکړه چي د الله تعالی وجود دي څرنگه وپېژندی؟

نو هغه وویل: البعرة تدل علی البعیر الاثر یدل علی المسیر فالسماء ذات الابراج والارض ذات الفجاج کیف لایدلان علی اللطیف الخبیر.

**ژباړه**: یعنی د اوښ پچه چي څوک ویني نو ورته معلومېږي چي دلته یو اوښ تېرسوی دی، او د پښې د پل نښان چي څوک ویني نو معلومېږي چي دلته څوک تېرسوی دی.

نو دا لوی لمر او سپوږمی او ستورو والا آسمان او دا د فراخه لارو والا مځکه ضرور د الله ﷻ د موجودیت خبر ورکوي، وگورئ دا یو عام صحرایي سړی و چي عالم، فاضل، او محقق نه و، خو بیا هم په لږ فکر او غور سره د الله تعالی موجود والی پېژني، نو دا خلگ چي د دونده واضح نښانیانو او علاماتو سره سره د الله تعالی له وجود څخه منکر وي نو د هغو په باره کي موږ دونده ویلای سو چي د دوی پر عقلو باندي پردې اچول سوي دي.

## ﴿وحدانیت﴾

**سوال**: ددې خبرې څه دلیل دی چي الله تعالی یودی؟

**ځواب**: خپله الله تعالی په قرآن مجید کي په ډیرو آیاتو کي خپل د وحدانیت او یوالی بیان کړی دی، او زموږ لپاره دا دلیل کافی دی، لکه څرنګه چي فرمایلي دي ﴿قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَد﴾(۱۶)

**ترجمه**: یعني ته ووایه چي الله ﷻ یودی.

او فرمایلي یې دي.

﴿وَالٰهُکُمْ اِلٰه واحِد لاَاَلٰهَ اِلاهُوَ الرحمنُ الرَحِیم﴾(۱۷)

**ترجمه**: اوستاسو معبود یودی د هغه څخه علاوه بل معبود نسته کوم چي رحمان اورحیم دی.

**سوال**: بعض خلګ د خدای تعالی وجود خو مني لیکن دیوه څخه د زیاتو معبودانو عقیده لري لکه هندوان اوعیسایان او نور د هغو لپاره یو عقلي دلیل بیان کړي

**ځواب**: دیوه څخه زیات معبودان منل د عقل اوفطرت

(۱۶) الاخلاص

(۱۷) البقرة: ۶۳

دواړو څخه خلاف دی لږ فکر وکړي چي ددې دنیا په کشنې بادشاهې کي هم په یوه وخت کي د دوو(۲) کسانو

حکمراني يا بادشاهي نه سي چليدلای نو په دې دومره لوی عالم کښي به د خداوند قدوس سره د ده په خدايي کي بل څوک څرنګه شريک سي، ولي چي د دوو،[۲] خدايانو په صورت کي به ياهميشه د دوارو په منځ کي اتفاق وي، يااختلاف.

که چيري د دوی په منځ کي هميشه اتفاق وي نو بيا خو ددوهم خدای حاجت نسته ولي چي هرکله چي ديوه فعل اواراده کافي سوه نو د دوهم ضرورت څه دی؟

هرکله چي ددوهم ضرورت نه سو پيدا، نو دوهم معطل او زائد سو اومعطل کيدل اوزائد کيدل د خداوند کريم د شان خلاف دی، لهذا معلومه سوه چي دوه خدايان نه سي کيدلای.

اوکه ددوارو په منځ کي اختلاف وي، مثلاً يوه د "زيد" دمرګ اراده وکړه او دوهم په داغه وخت کي د"زيد "دژوند اراده وکړه نو ضروري خبره ده چي په دې يوه وخت کي به يا زيد ته مرګ راځي اويا به ژوند ورکول کيږي او دا دواړې خبرې خو په يوه وخت کي نه سي کيدلای، لهذا که چيري زيد ته مرګ راغی اوزيد مړسونو هغه دوهم خدای ﷻ چي د زيد د ژوند فيصله يې کړې وه

عاجزه سو. او عاجزه كيدل خو دخداى ﷻ دشان خلاف دى اوكه په داغه وخت كي زيد ته ژوند وركړل سي نو هغه دوهم خداى ﷻ چي دزيد دمرګ فيصله يي كړې وه هغه عاجزه سو اوخداى ﷻ عاجزه نه وي.لهذا ثابته سوه چي خداى تعالى ﷻ يو ذى دوه نه سي كيداى اوپه خداى ﷻ كښي شركت محال دى. د مشركينو لپاره داغه ذكر سوى دليل عقلى الله جل شانه هم په قرآن مجيد كښي ذكر كړي دى الله تعالى فرمايي: ((لَوكَانَ فِيهِمَا آلِهَةٌ اِلاَّ اللّٰهُ لَفَسَدَتَا))[١٨]

**ترجمه**: يعني كه چيري په آسمان اومځكه كښي دالله تعالى څخه ماسوا نور معبودان واى نو دعالم دانظام به خراب سوى واى. اوحال دا دى چي دانظام يو رنګه چليږي خراب سوى نه دى.

نو ددې څخه دامعلومه سوه چي د الله تعالى سره شريک نسته.

---

(١٨) الانبياء: ٢٢

# ﴿صفات کمالیة﴾

**سوال**: د الله تعالی صفات کمالیه کوم کوم دي؟

**ځواب**: د الله تعالی صفات کمالیه ډیر دي په هغه صفات کمالیه وو یعني ښو صفاتو کي څه دا دي.

(۱) **وحدت**: یعني الله تعالی په خپل ذات کي هم یو دی او پخپلو صفاتو کي هم یو دی.

دده نه په ذات کښي څوک شریک سته اونه په صفاتو کښي[۱۹]

(۲) **قدم**: یعني الله تعالی همیشه وو او همیشه به وي نه دده ابتداء سته اونه دده انتهاء سته[۲۰]

(۳) **حیات**: یعني ژوند الله تعالی ژوندی دی او ژوندی به وي، د ژوند صفت دده لپاره همیشه ثابت دی[۲۱]

(۱۹) لقوله تعالی: قل هو الله احد (الاخلاص ۱) ولقوله تعالی لیس کمثله شیٔ (الشوری ۱۱)

(۲۰) لقوله تعالی هو الاول والاخر والظاهر والباطن (الحدید ۳) وقال النبي ﷺ اللهم انت الاول فلیس قبلک شیٔ وانت الاخر فلیس بعدک شیٔ الحدیث (رواه مسلم ۲۷۱۳ ـ ج ـ ۹، کنزالعمال ۳۸۲۰)

(۲۱) قال تعالی: الله لا اله الا هو الحی القیوم (البقرة ۲۵۵) وقال تعالی وعنت الوجوه للحی القیوم (طه ۱۱)

(۴) **قدرت**: قدرت معنی طاقت یعني الله تعالی ته پر هرشي باندي قدرت اوطاقت حاصل دی. هغه دټول عالم پر پیداکولو، اوموجود ولو باندي قادر دی، د ده د قدرت څخه هیڅ شی وتلی نه دی[۲۲].

(۵) **علم**: دعلم معنی ده پیژندل او معلومول یعني الله تعالی پر ټولو شیانو باندي عالم دی اوده د علم څخه هیڅ لوی اوکشنی شی وتلی نه دی . پر هره ذره باندي هغه علم لري هرشی دموجودیدو څخه مخکي او وروسته او د فناکیدو وروسته د الله تعالی په علم کي دی. د انسان په زړه کي راتلونکي خیالونه اوفکرونه اوپه توره شپه د تورمیږي دپښوحرکت او ټول شیان د الله تعالی په علم کی دي علم غیب یعني د پټو شیانو او پټوخبروعلم صرف د الله تعالی یوخاص صفت دی

(۶) **ارا ده**: د ارادې معنی ده په خپل اختیار سره کار کول، الله تعالی چي څه وغواړي په خپل اختیار سره یي پیداکوي او کوم شی چي وغواړي په خپل اختیار سره یي په علم کي دی علم غیب یعني د پټو شیانو او پټوخبروعلم

(۲۲) قال تعالی : والله علی کل شئ قدیر(البقرة : ۲۸۴)

صرف د الله تعالى يو خاص صفت دی[۲۳]

اوکوم شی چي وغواړي پخپل اختيار سره يي فناکوي[۲۴]

(۷) **سمع وبصر**: د سمع معنی ده اوريدل او د بصر معنی ده ليدل الله تعالی بيله غوږو او سترګو اوريدل اوليدل کوي او د ده لپاره تاريکه، اوړنا، ليري، اونږدي، دټولو ليدل او اوريدل برابر دي[۲۵]

(۸) **کلام**: دکلام معنی ده خبري کول يعني الله تعالی بيله ژبي خبري کولای سي، و ده ته په خبرو کولو کي د ژبي ضرورت نسته.

ولي چي محتاجه کيدل د مخلوق صفت دی او الله تعالی د محتاجي څخه پاک دی او د الله تعالی دکلام کيفيت معلوم نه دی[۲۶]

(۲۳) قال تعالى : يعلم مابين ايديهم وما خلفهم (البقرة: ۲۵۵ وطه ۱۱۰) وقال : انه عليم بذات الصدور (الملک: ۱۳) وقال وعنده مفاتح الغيب لايعلمها الاهو ويعلم مافى البر والبحر وما تسقط من ورقة الايعلمها ولاحبة فى ظلمات الارض ولارطب ولايابس الافى كتاب مبين (الانعام : ۵۹)

(۲۴) قال تعالى : فعال لما يريد (البروج: ۱۶) وقال: وربک يخلق مايشاء ويختار الاية (القصص: ۶۸)

(۲۵) قال تعالى : وهو السميع البصير (الشورى : ۱۱)

(۲۶) وكلم الله موسى تكليما (النساء: ۱۶۴) وقال : سلام قولا من رب رحيم (يسين : ۵۸) وقال الامام الاعظم فى الفقه الاكبر . ونحن نتكلم بالالات والحروف والله يتكلم بلا آلة ولاحرف [ص ـ ۲]

**تنبیه**: په دې خبره ښه ځان پوه کول پکار دي چې الله تعالی د مخلوق د صفتو څخه پاک دی، د ده صفتونه همیشه دي او همیشه به وی د ده هیڅ صفت هیڅ کله ختمیږي نه[٢٧]

په قرآن کریم او احادیث شریفه ووکي چې کوم د الله تعالی د بعض صفتونو ذکر دی مثلا لیدل اوریدل، ویل، لاس، پښه، او نور. نو پر دې صفتو باندي د ایمان راوړلو سره سره داعقیده هم درلودل پکار دي چې ددې په اصل حقیقت او مراد باندي الله تعالی خبردی او هغه ته معلوم دي. زموږ عقل په هغه باندي د پوهیدو څخه قاصر دی، موږ د هغو په اصل حقیقت باندي د پوهیدو بغیر اجمالا ایمان راوړو[٢٨]

---

(٢٧) قال تعالی لیس کمثله شیء (شوری ١١) وقال سبحان ربک رب العزة عما یصفون (الصافات ١٨٠) وقال الامام ابو حنیفة لایشبه شیئا من خلقه ولایشبهه شیء من خلقه . الی قوله . وصفاته کلها خلاف صفات المخلوقین یعلم لاکعلمنا . یقدر لاکقدرتنا . ویری لاکرؤیتنا (شرح الفقه الاکبر لملا علی قاری)

(٢٨) قال تعالی والراسخون فی العلم یقولون امنا به (آل عمران ٧) وقال الامام الشعراني اعلم ان من الادب عدم تاویل آیات الصفات ووجوب الایمان بها مع عدم الکیف (الیواقیت والجواهر ص ١٠٥ ج ٢) وقال فی الفقه الاکبر وله ید ووجه ونفس کما ذکره الله تعالی فی القرآن فما ذکره الله تعالی فی القرآن من ذکر الوجه والید والنفس فهو له صفة بلا کیف ولا یقال ان یده قدرة او نعمة لان فیه ابطال الصفة (ص ١٨٥)

(۹) **تخليق**: د تخليق معنى ده پيدا كول يعني الله تعالى دا تمام مخلوقات پيدا كړي دي د دي تمامو مخلوقاتو په پيدا كولو كي الله تعالى دچا محتاجه نه دى[۲۹]

(۱۰) **احياء او اماتت**: د احياء معنى ده ژوندي كول او د اماتت معنا ده مرگ وركول يعني چاته ژوند وركول اوچاته مرگ وركول خاص د الله تعالى په اختيار او اراده سره كېږي دده څخه ماسوا هيڅوک ژوند او يامرگ چاته نه سي وركولاى[۳۰]

(۱۱) **رازق**: د رازق معناده روزي وركول يعني روزي وركول او په هغه كي زياتونكى اوكمونكى د الله تعالى ذات دى، د هغه څخه ماسوا د هيڅ چاپه قبضه او اختيار كي روزي وركول ياپه روزي كې زياتول اوكمول نسته[۳۱]

---

(۲۹) قال تعالى : ذلكم الله ربكم خالق كل شئ (مومن ۶۲) وقال وخلق كل شئ (الانعام ۱۰۱) وقال ان الله غنى عن العالمين (آل عمران ۹۷)

(۳۰) قال تعالى قل الله يحييكم ثم يميتكم ثم يجمعكم الى يوم القيامة لاريب فيه ولكن اكثر الناس لايعلمون (الجاثية ۲۶) وقال الذي خلق الموت والحيات ليبلوكم ايكم احسن عملا (الملک ۲)

(۳۱) قال تعالى ان الله هو الرزاق ذوالقوة المتين (الذاريات ۵۸)

# (۲) (دوهم باب)

## پر ملائکو باندي ایمان

**سوال**: ملائکه څوک دي؟

**ځواب**: ملائکې د الله ﷻ یو غوره او بهترینه مخلوق دی[۳۲] کوم چي د نور څخه پیدا سوې دي[۳۳]

دوی هیڅ کله هم د الله تعالی نافرماني نه کوي پر کوم کار باندي چي مقررې کړي هغه کار کوي[۳۴] دوی نه خوراک کوي او نه څښاک کوي[۳۵]

او نه بیریږي، دوی نه نران دي او نه ښځې[۳۶] د یو مسلمان لپاره لکه څرنګه چي بیله لیدلو پر خدای تعالی باندي ایمان راوړل ضروري دی.

---

(۳۲) لقوله تعالی: وقالو اتخذ الرحمان ولدا سبحانه بل عباد مکرمون (انبیاء: ۲۶)

(۳۳) عن عائشة رضی الله تعالی عنها عن النبي ﷺ قال: خلقت الملائکة من نور (مسلم: ۲۹۹۶، واحمد ص ۱۶۸، ج ۶)

(۳۴) قال تعالی: لایعصون الله ماامرهم ویفعلون مایؤمرون (تحریم: ۶)

(۳۵) قال تعالی: هل اتاک حدیث ضیف ابراهیم المکرمین (الی قوله) قال الاتاکلون (الذاریات: ۲۴، ۲۷)

(۳۶) قال الله تعالی: فاستفتهم الربک البنات ولهم البنون ام خلقنا الملائکة اناثا وهم شاهدون، الا انهم من افکهم لیقولون (الصفت ۱۴۹-۱۵۱)

داغه رنګه د خدای تعالی پر پیداکړه نوارني مخلوق ملائکه وو باندي ایمان راوړل ضروري دی[۳۷]

**سوال:** ایا ملائکه د انسانانو په شکل یا په بل شکل کي هم راتلای سي؟

**ځواب:** هو! الله تعالیٰ وملائکوته دا صلاحیت ورکړی دی چي هغه له خپل شکله پرته په بل شکل سره هم ښکاره کېدلای سي، لکه څرنګه چي په قرآن مجید کښي د حضرت ابراهیم علیه السلام حضرت مریم او حضرت لوط علیهم السلام په قصو کي مذکوره دي چي ملائکه د انسان په شکل کي و دوی ته راتله[۳۸]

**سوال:** د ملائکه وو تعداد څو دی؟

**ځواب:** د ملائکو تعداد له الله تعالی پرته هیڅ چاته نه دی معلوم[۳۹]

(۳۷) قال تعالی "ومن یکفر بالله وملائکته وکتبه ورسله فقد ضل ضلالا بعیدا (النساء ۱۳۶) وقال تعالی کل امن بالله وملائکته وکته ورسله الآیة (البقره ۲۸۵)

(۳۸) لقوله: فتمثل لها بشرا سویا (مریم: ۱۷) وقال تعالی: هل اتاک حدیث ضیف ابراهیم المکرمین اذدخلوا علیه فقالوا سلاما قال سلام قوم منکرون (الذاریات: ۲۴_۲۵) وقال تعالی: ولما جائت رسلنا لوطاسیئ بهم وضاق بهم ذرعا (هود: ۷۷) وعن عمر بن الخطاب فی حدیث جبرئیل: اذطلع علینا رجل شدید بیاض الثیاب شدید سواد الشعر (رواه الشیخان)

(۳۹) قال تعالی: ومایعلم جنود ربک الاهو (المدثر ۳۱)

**سوال**: د ملائکو نومونه سته؟

**ځواب**: هو! د ملائکو نومونه سته. يوڅو نومونه الله تعالى وه انسانانو ته هم ور ښولي دي او هغه دا دي

(۱) حضرت جبرئيل عليه السلام (۴۰)

(۲) حضرت ميکائيل عليه السلام (۴۱)

(۳) حضرت اسرافيل عليه السلام (۴۲)

(۴) حضرت عزرائيل عليه السلام (۴۳)

(۵) حضرت مالک عليه السلام (۴۴)

(۶) حضرت رضوان عليه السلام (۴۵)

(۷) حضرت منکر نکير عليهما السلام (۴۶)

---

(۴۰ و ۴۱) قال تعالى: من كان عدوا لله وملائكته وجبريل وميكال فان الله عدو للكافرين (البقرة ۹۸)

(۴۲) اللهم رب جبرئل وميكائيل واسرافيل فاطر السماوات والارض عالم الغيب والشهادة انت تحكم بين عبادک الحديث (رواه احمد: ۱۵۶: ۶)

(۴۳) اخرج ابن ابى الدنيا ابو الشيخ فى العظمة عن اشعث بن اسلم قال: سال ابراهيم عليه السلام ملک الموت واسمه عزرائيل وله عينان فى وجهه (الحبائک للسيوطي ص ۲۲ رقم ۱۲۳)

(۴۴) قال تعالى: ونادوا يامالک ليقض علينا ربک (الزخرف ۷۷)

(۴۵) عن ابن عباس رضي الله عنه قال: لما عير المشركون رسول الله ﷺ بالفاقة (الى قوله) اذ عد جبرئيل الى حله فقال يامحمد ابشر هذا رضوان خازن الجنة. الحديث (الحبائک: ص ۶۷)

(۴۶) عن ابى هريرة رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ اذا اقبر الميت اتاه ملكان اسودان ازرقان يقال لاحدهما منكر وللاخر نكير. الحديث (الترمذى كتاب الجنائز باب عذاب القبر. ص ۱۲۷ ج ۱)

(۸) هاروت وماروت عليهما السلام[۴۷]

**سوال**: آيا الله تعالى د ملائکو پر ذمه څه کارهم سپارلی دی؟

**ځواب**: هو! الله تعالى د ملائکو پر ذمه ډېر کارونه سپارلي دي[۴۸]

مثلاً حضرت جبرئيل عليه السلام کوم چي پر ټولو ملائکو باندي مشر سردار دی[۴۹]

الله تعالى وه انبياء کراموته د وحې ورلو ذمه داري ورسپارلې ده[۵۰]

او د الله تعالى په حکم سره د بند ګانو حاجتونه پوره کول هم د ده ذمه واري ده[۵۱]

او حضرت ميکائيل عليه السلام د باران اورلو او شنګياوو شنه کولو پر کار باندي مامور دی[۵۲]

---

(۴۷) قال تعالى: وما انزل على الملكين ببابل هروت وماروت (البقرة ۲ ۱۰۲)

(۴۸) قال تعالى: فالمقسمات امرا (الذاريات: ۴)

(۴۹) عن ابن عباس رض قال قال رسول الله ﷺ الا اخبركم بافضل الملائكة جبرئيل (كنزالعمال ۳۵۳۴۳ ۱۲ والدر المنثور ۹۲ ۱)

(۵۰) قال تعالى: الله يصطفي من الملائكة رسلا (الحج ۷۵) وقال: انه لقول رسول كريم (الحاقة: ۴۰ والتكوير ۱۹) قال الامام السيوطي تحت هذه الاية وصف الله تعالى جبرئيل بستة من صفات الكمال احدها كونه رسولا من عند الله (الحبائك ۲۲۱)

(۵۱) عن جابر بن عبدالله رض عن النبي ﷺ قال: ان جبرئيل موكل بحاجات العباد الحديث (الدر المنثور ۹۲ ۱ وبيهقي في شعب الايمان)

(۵۲) حديث جابر بن عبدالله رض المذكور

او حضرت اسرافيل عليه السلام د قيامت په ورځ پرشپيلۍ پوكلو باندي مامور دی[۵۳]

او حضرت عزرائيل عليه السلام پر روح قبض كولو باندي مامور دی[۵۴]

همدارنگه د جنت او دوږخ پر كارو باندي هم ملائكه مقرري دي[۵۵]

او الله تعالى د انسانانو پر حفاظت باندي هم څه ملائكه ماموري كړيدي كوم ته چي حفظه وايي[۵۶]

او څه ملائكه د انسانانو د اعمالو پر ليكلو باندي مقرري دي، كوم ته چي "كراما كاتبين" وَيل كيږي[۵۷]

او بيا څه ملائكه وو د الله تعالى عرش پورته كړي دی[۵۸]

---

(۵۳) عن ابى سعيد رضي الله عنه قال: قال رسول الله ﷺ اسرافيل صحب الصور، الحديث (الدر المنثور، ۱: ۹۴ ومسند احمد، ۳: ۱۰)

(۵۴) قال تعالى: قل يتوفاكم ملك الموت الذي وكل بكم (آلم السجدة: ۱۱) وعن زيد بن ثابت قال قال رسول الله ﷺ، ومامن اهل بيت الا وملك الموت يتعاهدهم فى كل يوم مرتين فمن وجده قد انقضى اجله قبض روحه، الحديث (كنز العمال: ۴۲۱۳۳)

(۵۵) قال تعالى: وسيق الذين اتقوا ربهم الى الجنة زمرا حتى اذا جاؤها وفتحت ابوابها، وقال لهم خزنتها سلام عليكم طبتم فادخلوها خالدين (الزمر: ۷۳) وقال وما جعلنا اصحاب النار الا ملائكة (المدثر: ۳۱)

(۵۶) قال تعالى: وان عليكم لحافظين (الانفطار: ۱۰) وقال: ويرسل عليكم حفظة (انعام: ۶۱)

(۵۷) وقال تعالى: وان عليكم لحافظين كراما كاتبين (الانفطار: ۱۰_۱۱)

(۵۸) قال تعالى: الذين يحملون العرش ومن حوله يسبحون بحمد ربهم (المومن) وقال تعالى ويحمل عرش ربك فوقهم يومئذ ثمانية (الحاقة: ۱۷)

# (۳) ﴿دریم باب﴾

# اسماني کتابونه

**سوال:** پر اسماني کتابو باندي د ایمان راوړلو څه مطلب دی؟

**ځواب:** لکه څرنګه چي پر الله تعالی باندي د هغه پر رسولانو باندي د هغه پر ملائکو باندي ایمان راوړل ضروري دی. همدارنګه پر ټولو کتابو باندي کوم چي الله تعالی پر خپلو نبیانو باندي نازل کړي دي همدارنګه پر دې خبره ایمان راوړل ضروري دی چي د الله تعالی دا ټول نازل سوي کتابونه حق اورشتیادي.

که چیري یوڅوک پر دې آسماني کتابو باندي یا په دوی کي پر یوه باندي ایمان را نه وړي نو کافر کیږي[۵۹]

**سوال:** کوم کوم کتابونه پر کومو کومو پیغمبرانو باندي نازل سوي دي؟

**ځواب:** د حضرت آدم علیه السلام څخه بیا زموږ تر نبي علیه السلام لکه تورات پر حضرت موسی علیه السلام باندي، زبور پر حضرت داوٗد علیه السلام باندي،

---

(۵۹) قال تعالی: قولوا آمنا بالله وما انزل الینا وما انزل الی ابراهیم واسماعیل واسحاق (البقرة: ۳۶) وقال والذین یؤمنون بما انزل الیک وما انزل من قبلک (البقرة ۴)

انجیل پر حضرت عیسی علیه السلام باندي. او قرآن کریم پر حضرت محمد ﷺ باندي[٦٠]

ددي علاوه نور ډیر کشني کتابونه الله تعالی پر انبیاء کرامو باندي نازل کړی دی چي وهغو ته صحیفي ویل کیږي.

مثلا لس صحیفي پر حضرت ادم علیه السلام باندي

پنځوس صحیفي پر حضرت شیث علیه السلام باندي

دیرش صحیفي پر حضرت ادریس علیه السلام باندي[٦١]

اولس صحیفې یا دیرش صحیفې پر حضرت ابراهیم علیه السلام باندي

**سوال:** ایا دغه کتابونه، تورات، انجیل، زبور، تر اوسه پوري دخپل اصلي تعلیماتو سره موجود دی او که نه؟

**ځواب:** څرنگه چي د قرآن څخه ماسوا الله تعالی بل دځه کتاب د حفاظت ذمه داري نه ده اخستې ددي سببه هغه نور کتابونه د تحریف یعني رد وبدل څخه محفوظه نه سوه پاته د وخت تیریدو سره سره خلگو خپل د خوښي اوخواهشاتو مطابق تغیر او تبدیل په کښي وکړی له دي

(٦٠) قال تعالی ان انزلنا التوراة فیها هدی ونور (المائدة ٤٤) وقال واتینا داوٗد زبورا (النساء ١٦٣)

وقال وآتیناه الانجیل فیه هدی ونور (المائدة ٤٦) وقال وانزلنا الیک الکتاب بالحق مصدق لما بین یدیه من الکتاب (المائدة ٤٨)

(٦١) قال تعالی ان هذا لفی الصحف الاولی صحف ابراهیم وموسی (الاعلی ١٨-١٩)

سببه موړته ددي کتابو په اړه دا عقیده درلودل پکار ده. چي دا کتابونه الله تعالی پر خپلو انبیاء کرامو باندي نازل کړي وه، د وروسته په زمانه کي په دغو کي رد وبدل وسو، او د قرآن مجید د نازلیدو وروسته د دي کتابونو پیروي متابعت جائز نه دی[۶۲].

**سوال**: د اسماني کتابونو پر ضرورت باندي څه وضاحت وکړي؟

**ځواب**: په دنیا کي دا قاعده او طریقه ده چي د هر حکومت د انتظام چلولو لپاره څه دستور او قانون جوړول کیږي لکه پرګناه باندي د سزا قانون د فوج قانون دتجارت او د ژوند تیرولو قانون د الله تعالی دطرفه څخه هم کوم چي د باد شاهانو باچا او احکم الحاکمین دی اودا ټوله عالم دده مخلوق اومملوک دی خپل د بنده ګانو لپاره د دغسي قوانینواو ضوابطو رالیږلو ضرورت وو دکوم چي خالق اومالک اطاعت اوفرمانبرداري پرځای کولای سي لکه څرنګه چي دا قوانین الهی دحضراتو انبیاء کرامو په واسطه وقتا فوقتا پر کومو

(۶۲) قال تعالی: یحرفون الکلم عن مواضعه (مائدة ۱۳)، وقال تعالی فاحکم بینهم بما انزل الله ولاتتبع اهوائهم عما جائک من الحق (المائدة ۴۸)

باندي چي عمل کول واجب وو[۶۳]

تر داسي وخته چي زموږ پر خوږ نبی ﷺ باندي آخري کتاب قرآن کریم الله تعالی نازل کړی.

**سوال**: د قرآن کریم په اړه اسلامي عقیده څه ده؟

**ځواب**: د قرآن کریم په اړه زموږ دا عقیده ده چي دا د الله تعالی کلام دی[۶۴]

چي ده پر خپل حضرت محمد ﷺ باندي د حضرت جبرئیل علیه السلام په واسطه په[۶۵] ۲۳ کاله کي لږ لږ نازل کړی[۶۶]

قرآن کریم داسي معجزه ده چي ددې نظیر ترقیامته پوري هیڅوک نه سي جوړولای[۶۷]

---

(۶۳) قال تعالی ومن لم یحکم بما انزل الله فاولئک هم الکافرون(مائدة ۴۴)

(۶۴) وقال تعالی: وان احد من المشرکین استجارک فاجره حتی یسمع کلام الله ثم ابلغه مامنه (التوبة: ۶) وقال تعالی: یریدون ان یبدلوا کلام الله (الفتح ۱۵)

(۶۵) قال تعالی: نزل به الروح الامین(شعراء: ۱۹۳) وقال تعالی: انه لقول رسول کریم(تکویر: ۱۹)

(۶۶) قال تعالی: وقال الذین کفروا لو لانزل علیه القرآن جملة واحدة کذلک لنثبت فوادک(فرقان: ۳۲) وقال تعالی: وقرآنا فرقناه لتقراه علی الناس علی مکث ونزلناه تنزیلا(اسراء: ۱۰۶) وقال ابن کثیر فی سورة القدر: قال ابن عباس وغیره انزل الله القرآن جملة واحدة من اللوح المحفوظ الی بیت العزة من السمآء الدنیا ثم نزل مفصلا بحسب الوقاع فی ثلاث وعشرین سنة علی رسول الله ﷺ (تفسیر ابن کثیر)

(۶۷) قال تعالی: قل لئن اجتمعت الانس والجن علی ان یاتوا بمثل هذا القرآن لایاتون بمثله ولوکان بعضهم لبعض ظهیرا (بنی اسرائیل: ۸۸)

قرآن کریم دمخکنیو اسماني کتابونو حکمونه منسوخ کړه قرآن کریم ترقیامته پورې راتلونکو انسانانولپاره د هدایت د لارې دستور العمل، اود ژوند طابطه ده (۶۸) په قرآن کریم کی ډیر حکمونه اجمالا او تفصیلا بیان سوي دي بیا د دي اجمالی حکمونو وضاحت او تشریح رسول الله ﷺ پخپل قول او عمل سره په احادیثو اوسنتو کړیده.او د قرآن کریم څخه ماسوا هم نبيﷺ د الله تعالی د وحې مطابق احکامات ښولي دي، د اتوله منل او پرتولو باندي عمل کول لازم دي (۶۹)

په قرآن مجید کي ترقیامته پورې تحریف تغیر اوتبدیل نه سي کیدلای ولي چي د هغه د حفاظت ذمه واري خپله الله تعالی اخستې ده (۷۰)

همدغه وجه ده چي د څوارلس سوه کاله تیریدو سره سره قرآن کریم هغه رنګه موجود دی څرنګه چي پر نبي ﷺ

(۶۸) قال تعالی: وماهو الاذکر للعالمین (قلم ۵۲) وقال تعالی اتبعوا ماانزل الیکم من ربکم (اعراف ۳)

(۶۹) قال تعالی: وانزلنا الیک الذکر لتبین للناس ما نزل الیهم ولعلهم یتفکرون (نحل ۴۴) وقال تعالی: هو الذی بعث فی الامیین رسولا یتلوا علیهم آیاته ویزکیهم ویعلمهم الکتاب والحکمة وان کانوا من قبل لفی ضلال مبین (الجمعة ۲) وقال تعالی وما ینطق عن الهوی ان هو الا وحی یوحی (النجم ۳)

(۷۰) قال تعالی: انا نحن نزلنا الذکر وانا له لحافظون (الحجر ۹)

باندي په ۲۳ کاله کي نازل سوی وو[۷۱]

د ده په زور، زير. او پيښ کي هم څه تبديلي نه راغلې ده او نه به راسي.

**سوال**: تاسو وويل چي قرآن کريم په درويشت کاله کي نازل سوی دی، اومونږ په کتابو کي دا ويلي دي چي قرآن کريم د شب قدر په شپه نازل سوی دی؟

**ځواب**: دا دواړې خبرې صحيح دي ددې تفصيل دادی چي قرآن کريم دلوح محفوظ څخه اول آسمان ته پوره پوره په يوه وار، د روژې د مياشتي په يوه شپه (شب قدر) کي نازل سوی دی. لکه قرآن کريم چي وايي: ﴿اِنَّا اَنْزَلْنَاهُ فِی لَيلَةِ الْقَدْرِ﴾ بيا د هغه وروسته د اول آسمان څخه ودنيا ته پر حضرت محمد ﷺ باندي لږ لږ د ضرورت مطابق په درويشت (۲۳) کاله کي نازل سو

**سوال**: آيا قرآن کريم په داغه ترتيب سره زمونږ پر پاک نبي ﷺ باندي نازل سوی دی پر کوم ترتيب چي اوس موجود دی؟

---

(۷۱) قال تعالى: وقرآنا فرقناه لتقراه على الناس على مكث ونزلناه تنزيلا(اسراء: ۱۰۶)

**ځواب**: د قرآن کریم د نازلیدو ترتیب جلا وو او د لیکلو ترتیب جلا دی د نازلیدو ترتیب هغه نه دی کوم چي اوس دی، او د قرآن کریم موجوده ترتیب هم د الله تعالی د طرفه څخه دی.

لکه څرنګه چي کله یو آیت یا یو سورت نازلیدی نو حضرت جبرئیل ﷺ زموږ پاک نبي ﷺ ته وربښودل چي دا آیت یا سورت د فلان سورت یا آیت وروسته یا مخته ولیکه. او نبي ﷺ به د هغه ترتیب مطابق په صحابه کرامو ﷺ اجمعین لیکی[۷۲]

دا رنګه د قرآن کریم دا موجوده ترتیب جوړ سو، او دا هغه ترتیب دی په کوم ترتیب سره چي قرآن مجید په لوح محفوظ کي موجود دی.

---

(۷۲) عن عثمان بن ابی العاص قال کنت عند رسول الله ﷺ جالسا اذ شخص ببصره (الی قوله) فقال اتانی جبرئیل . فامرنی ان اضع هذه الآیة بهذا الموضع من هذه السورة . ان الله یامر بالعدل والاحسان وایتاء ذی القربی وینهی عن الفحشاء والمنکر والبغی یعظکم لعلکم تذکرون . (رواه احمد ۲۱۸/۴) .

# (۴) «څلورم باب»

## پر انبياء کرامو عليهم السلام باندي ايمان

**سوال**: نبوت يارسالت څه ته ويل کيږي؟

**ځواب**: دا خبره خو تاسو ته معلومه ده چي الله تعالى د ټولوحاکمانو حاکم دی، او د ټولو باچهانو باچا دی اوپه دي هم خبر ياست چي الله تعالى په هره زمانه کي د خپلو بندګانو لپاره احکام نازل کړيدي.اوتر بندګانو پوري ددي احکامو درسولو لپاره يي څه خاص کسان منتخب (چوڼ) کړيدي [۷۳]

دې خاصو کسانو ته چي دالله تعالى احکامات تر بندګانو پوري دخپلو احکامو رسولو ذمه واري ورکړيده دي ذمه واری ته نبوت اورسالت ويل کيږي اودې خاصو بندګانو ته نبيان اورسولان ويل کيږي.

څرنګه چي نبي اورسول دالله تعالى خاص اومقرب بندګان وي له دې کبله پردوی باندي ايمان را وړل د ودی تعظيم اواطاعت کول فرض دی،

(۷۳) قال تعالى: رسلا مبشرين ومنذرين لئلا يكون للناس على الله حجة بعد الرسل وكان الله عزيزا حكيما (النساء: ۱۶۵)، وقال: ربنا لولا ارسلت الينا رسولا فنتبع آياتک من قبل ان نذل ونخزى(طه: ۱۳۴)

او انکار یا سپکاوی کول یې کفر ده ی.[٧٤]

**سوال**: د نبي او رسول په منځ کې څه فرق سته او که دواړه یو دي؟

**ځواب**: هو! د نبي اورسول په منځ کي څه فرق سته لکه څرنګه چي نبي د هغه مقدس اومعصوم هستۍ نوم دی، کوم چي الله تعالی وخپلو بندګانو ته دخپلو حکمونو رسولولپاره رالیږلی وي.

که پرده باندي څه کتاب نازل سوی وي اوکه نه وي[٧٥]

کوم چي رسول وهغه محترم اومعصوم هستي ته ویل کیږي کوم چي الله تعالی دخپلو احکامو وبندګانو ته د رسولو لپاره لیږلی وي اوپرده باندي یو کتاب هم نازل سوی وي.

---

(٧٤) قال تعالی: یا ایها الذین آمنو لاتقولو راعنا وقولوا انظرنا واسمع وللکافرینعذاب الیم(البقرة: ١٠٤)، وقال: یا ایها اللذین آمنوا لاترفعوا اصواتکم فوق صوت النبي ولا تجهروا له بالقول کجهر بعضکم لبعض ان تحبط اعمالکم وانتم لاتشعرون(الحجرات: ٢)، وقال: وما ارسلنا من رسول الا لیطاع باذن الله (النسآء: ٦٤)

(٧٥) قال الشیخ ملا علی القاري: وظاهر کلام الامام ترادف النبي والرسول کما اختاره ابن الهمام الا ان الجمهور علی ما قدمنا من ان الرسول اخص من لنبي فی تحقیق المرام (شرح الفقه الاکبر: ١١)

**سوال**: د انبیاء کرامو په اړه اسلامي عقیده څه ده؟

**ځواب**: د هرمؤمن لپاره دا ضروري ده چې اجمالاً پر ټولو انبیاء کرامو باندې ایمان راوړي[۷۶]، او ددوی په باره کې دا عقیده ولري

(۱) انبیاء کرام د الله تعالی هغه مقرب او محترم بندګان دي کوم چې الله تعالی د نبوت او رسالت لپاره منتخب کړي دي[۷۷]

(۲) ټوله انبیاء کرام په صدق، حکمت، امانت، او علم کې تر ټولو مخلوقاتو پورته دي[۷۸]

(۳) ټوله انبیاء کرام د هر قسم صغیره او کبیره ګناهونو څخه خصوصاً د کفر او شرک څخه معصوم دي او ددې شیانو څخه الله تعالی د نبوت څخه مخکې هم او وروسته هم ساتلي دي[۷۹]

---

(۷۶) قال تعالی: کل امن بالله وملئکته وکتبه ورسله لانفرق بین احد من رسله (البقرة ۲۸۵)، وقال فی شرح الفقه الاکبر . ورسله ای جمیع انبیائه اعم من انه امر بتبلیغ الرسالة ام لا (الی قوله)، ولانعین عدد الئلا یدخل فیهم من لیس منهم اویخرج منهم من هو منهم (شرح الفقه الاکبر ۱۱)

(۷۷) قال تعالی: الله یصطفي من الملائکة رسلا ومن الناس (حج ۷۵)

(۷۸) قال تعالی: هذا ماوعد الرحمن وصدق المرسلون (یس ۵۲)، وقال تعالی انی لکم رسول امین (شعراء ۱۰۷)، وقال اولئک الذین آتیناهم الکتاب والحکم والنبوة (انعام ۸۹)

(۷۹) قال الملاعلی قاری: والانبیاء علیهم السلام کلهم ای جمیعهم منزهون ای معصومون عن الصغائر والکبائر ای من جمیع المعاصي والکفر . والقبائح . ثم هذه العصمة ثابتة للانبیاء قبل النبوة وبعدها علی الاصح (شرح الفقه الاکبر ۵۴، ۵۵)

او د هغه وجه داده چي نبوت اورسالت داسي يو عظيمه منصب دی دکوم سره چي دټولو انسانانو هدايت او رهنمائي تړلې ده. اوالله تعالی دهر نبي وامت ته دا حکم ورکړی دی چي دوی دي دخپل نبي دقول اوفعل پيروي وکړي[۸۰]

او دا ښکاره خبره ده چي الله تعالی دگناه اود ناپسنديده (ناخوښه) خبرې د پيروي حکم نه کوي[۸۱]

ددې وجهې څخه ضروري ده چي ټوله انبياء کرام به دگناهونو څخه پاک اومعصوم وي.

(۴) ټوله انبياء کرام بشر اوپاک ترين انسانان دي. ددوی ذوات د فرشتو څخه جلادي، څرنگه چي دوی بشر وه نو ځکه به يي بشري تقاضې هم پوره کولې، اود دوی بي بي گانې او اولادونه هم وه دوی خوراک، چښاک کاوه او بيديدله هم[۸۲]

(۵) لکه څرنگه چي پر ټولو انبياء کرامو او پردوی باندي

---

(۸۰) قال تعالی وما ارسلنا من رسول الا ليطاع باذن الله (النساء: ۶۴)

(۸۱) قال تعالی ان الله لايامر بالفحشاء (الاعراف ۲۸)

(۸۲) قال تعالی ولقد ارسلنا رسلا من قبلک وجعلنا لهم ازواجا وذرية (رعد ۳۸) وقال تعالی وما ارسلنا من قبلک من المرسلين الا انهم ليأكلون الطعام ويمشون في الاسواق (الفرقان ۲۰)

نازل سوي كتابونو او معجزاتو باندي ايمان را وړل اجمالا فرض دی هم دا رنګه پر دې باندي لازمي دی چي ټولو انبياء كرامو د دعوت او تبليغ فريضه په ډيره ښه اومكمله او په بشپړه توګه سرته ورسوله او په دي فريضه كي يي هيڅ قسم كوتاهي نه ده كړي (٨٣)

**سوال**: الله تعالى په دي دنيا كي څومره پيغمبران را ليږلي دي؟

**ځواب**: الله تعالى د حضرت آدم عليه السلام څخه ونسى بيا زموږ تر پيغمبر ﷺ پوري ډير پيغمبران ودې دنيا ته راليږلي دي، په كوم كي چي دڅه پيغمبرانو تذكره په قرآن كريم اواحاديثو شريفه وو كي هم سته: (٨٤)

كه څه هم په بعض رواياتو كي د ټولو انبياء كرامو تعداد پاو بالايولک او په نورو كي بيا پاو بالادوه لكه راغلى دى. ليكن بهتره دا ده چي د انبياء كرامو د صحيح تعداد او شمير علم د الله تعالى سره دى او اجمالا پر ټولو انبياء كرامو ايمان راوړي (٨٥)

---

(٨٣) قال تعالى: الذين يبلغون رسلت الله ويخشونه ولايخشون احدا الا الله (الاحزاب: ٣٩)

(٨٤) قال تعالى: ولقد ارسلنا رسلا من قبلک منهم من قصصنا عليک ومنهم من لم نقصص عليک، الاية (المؤمن: ٧٨)، (٨٥) قال الملا على قاري: وقد ورد انه ﷺ سئل عن عدد الانبياء عليهم السلام. فقال: ماة الف واربعة وعشرون الفا وفى رواية مئتا الف واربعة وعشرون الفا لان الاولى لايقتصر على عدد فيهم (شرح الفقه الاكبر: ٥٣)

# (خاتم المرسلین ﷺ)

**سوال**: د نبي کریم ﷺ په اړوند څه عقیده لرل پکار ده؟

**ځواب**: د نبي کریم ﷺ په باره کي د هر مسلمان لپاره دا لاندي عقیدې درلودل پکار دي.

(١) **فضل الخلائق**: یعني چي نبي کریم ﷺ په ټولو مخلوقاتو کي افضل ترین اود الله تعالی محبوب اومقبول ترین بنده دی، د الله تعالی څخه وروسته تر ټولو زیات قابل د احترام دی په افضلیت کي هیڅ یو فرد د مخلوق دده برابر خوځه نږدي کیدلای هم نه سي[٨٦]

(٢) **درسالت عام کیدل**

نبي ﷺ ترقیامته پوري د راتلونکو ټولو انسانانو لپاره اود هرې زمانې لپاره رسول دی[٨٧]

---

(٨٦) عن ابن عباس قال: ان الله فضل محمدا ﷺ علی الانبیاء، وعلی اهل السماء (الدارمی، رقم ٤٦) وعن انس قال: النبي ﷺ انا سید ولد آدم یوم القیامة ولافخر (مسلم، رقم ٢٢٧٨ _ ترمذي، رقم ٣١٦٠) وعن عبد الله بن عمرو ﷺ قال قال رسول الله ﷺ ان الله اتخذني خلیلا کما اتخذ ابراهیم خلیلا (رواه ابن ماجه) وقال تعالی انک لعلی خلق عظیم ° قال المفسر الرازی فلما امر محمد ﷺ بان یقتدی بالکل فکانه امر بمجموع ماکان متفرقا فیهم ولما کان ذلک درجة عالیة لم تتیسر لاحد من الانبیاء، قبله لاجرم وصف الله خلقه بانه عظیم (تفسیر کبیر ٣٠ ـ ٨٠)

(٨٧) قال تعالی وما ارسلناک الا کافة للناس بشیرا ونذیرا (سبا ٢٨) وقال تعالی: یا ایها الناس اني رسول الله الیکم جمیعا (الاعراف ١٥٨)

**(٣) ختم نبوت:**

الله تعالی دی تر قیامته پورې د راتلونکو تمامو انسانانو اوپیریانو لپاره رسول جوړ کړ اورا وي لیږی[٨٨]

اود انبیاوو او رسولانو سلسله یي د ده پر نبوت باندي پوره کړیده لکه څرنگه چي ترده وروسته هیڅ نبي یازسول نه راځي په قرآن مجید کي د الله تعالی ارشاد دی.

﴿وَلٰكِنْ رَسُوْلَ اللهِ وَخَاتَمَ النَّبِيِّيْنَ﴾

**ترجمه:** لکن محمدﷺ د الله تعالی رسول او اخري نبي دی لهذا ددې آیت کریمه له رویه څخه څوک چي هم دده د ختم نبوت انکار کوي هغه کافر کیږي.

د نبيﷺ د رحلت وروسته ډیر په درواغو د نبوت د عوه کونکي پیداسوه لکه مسیلمه کذاب اوغلام احمد قادیاني (لعنة الله علیهم) کوم چي خپله هم گمراهان سوي وه، اودځان سره یي نور کسان هم گمراهان کړه.

**(٤) رحمت اوهدایت:** الله تعالی نبيﷺ د ټوله جهان لپاره رحمت اوسبب د هدایت جوړ کړی اورا وي لیږی[٨٩]

---

(٨٨) قال تعالی: یامعشر الجن والانس الم یاتکم رسل منکم(الانعام: ١٣٠)

(٨٩) قال تعالی: وما ارسلناک الا رحمة للعالمین(الانبیاء: ١٠٧)

(۵) **وجوب اطاعت**: د نبيﷺ اطاعت پر هر سړي باندي فرض دی دده اطاعت د الله تعالی اطاعت دی اودده په نافرماني کي د الله تعالی نافرماني ده[۹۰]

(۶) **محبت**: تر خپل مور او پلار، تر ورونو مال اودولت اونورو ټولو شیانو په مقابله کي ترټولو زیات د نبيﷺ سره (عقلي) محبت دزړلودل د ایمان تقاضاده[۹۱]

(۷) **د درود ډیر ویل**: پر نبيﷺ باندي په کثرت سره درود ویل مستحب اوډیر لوی عبادت دی[۹۲]

(۸) **بشریت**: نبيﷺ د الله تعالی بنده کامل ترین انسان اوپاکترین بشر دی، نبيﷺ ملائکه یانور نه دی بلکه د نورو انسانانو اونبیانو رنګه دی هم د حضرت آدمﷺ داولاد څخه وو. همداغه داهل السنة والجماعت عقیده ده[۹۳]

---

(۹۰) قال تعالی: من یطع الرسول فقد اطاع الله (النساء ۸۰) وقال تعالی ومن یعص الله ورسوله الایة (النساء ۱۴)

(۹۱) قال تعالی: قل ان کان آباؤکم وابناؤکم واخوانکم وعشیرتکم واموال اقترفتموها وتجارة تخشون کسادها ومساکن ترضونها احب الیکم من الله ورسوله وجهاد فی سبیله فتربصوا حتی یاتی الله بامره (توبة ۲۴) وقال تعالی النبي اولی بالمومنین من انفسهم (احزاب ۶)

(۹۲) قال تعالی: ان الله وملائکته یصلون علی النبی یا ایها الذین امنوا صلوا علیه وسلموا تسلیما (احزاب ۵۶)

(۹۳) قال تعالی: ولو جعلناه ملکا لجعلناه رجلا. الایة (الانعام ۹)

څه کسان د اهل السنت والجماعت ددې عقیدې پر خلاف. نبي ﷺ د ذات په اعتبار سره د بشر یعني انسان پر ځای (معاذ الله تعالی) نور بولي. د دوی دا عقیده د قرآن اوسنت دواړو څخه خلاف ده.لکه څرنګه چي په قرآن مجید کي د الله تعالی ارشاد دی

﴿قُلْ اِنَمَا اَنَا بَشَرٌ مِثْلُکُمْ یُوْحٰی اِلَیَّ اَنَّمَا اِلٰهُکُمْ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ﴾(۹۴)

**ترجمه**: ای محمده ﷺ ته ودوی ته ووایه زه ستاسو رنګه انسان یم، وماته وحی کیږي چي ستاسو معبود برحق یودی. اوپه یوه صحیح حدیث کي د سجده سهوې په ضمن کي د نبي ﷺ ارشاد دی (اِنَّمَا اَنَا بَشَرٌ مِثْلُکُمْ اَنْسٰی کَمَا تَنْسَوْنَ)(۹۵)

**ترجمه**: زه ستاسو رنګه انسان یم څنګه چي ستاسو هیریږي داغه رنګه زما هم هیریږي.

لهذا دقرآن اوحدیث دواړو څخه ثابته سوه چي زموږ نبي پاک ﷺ یو کامل ترین انسان اوپاک ترین بشر دی اود یواعلی منصب یعني د نبوت اورسالت پر منصب باندي فائز دی.

---

(۹۴) سورة الکهف ۱۱۰

(۹۵) رواه البخاري فی الجامع الصحیح رقم ۴۰۱، ۱۴۸: ۱، کتاب الصلوة

دده په اړه دا عقیده درلودل چي دی له نوره څخه پيدا دی یعني دی بشر نه وو جاهلانه خبره ده.

(۹) **معراج**: زموږ دا عقیده ده چي الله تعالی زموږ نبي پاک ﷺ په ویښه، سره د مبارک جسمه، د مسجد اقصی څخه داوو (۷) آسمانو لیدنه وکړه اودا لیدنه کتنه نبي ﷺ دجنت پر یوسواري (براق) باندي وکړه دکوم چي به قدم پر هغه ځای لگیدی پر کوم ځای چي به نظر لگیدی[۹۶]

او په داغه شپه بیرته نبي ﷺ مکي مکرمې ته راغلی[۹۷]

(۱۰) **حیات النبي**: د اهل سنت والجماعت اجماعي اومتفقه عقیده داده چي زموږ خوږ نبي ﷺ په خپل قبر مبارک کي ژوندی دی دده دا ژوند د دنیا رنگه ژوند دی (برزخي ژوند نه دی کوم چي وټولو انسانانو ته په قبر کي حاصل دی)

خو بیا هم په دې ژوند کي دی مکلف نه دی زموږ دا عقیده

---

(۹۶) قال تعالی: سبحان الذي اسری بعبده لیلا من المسجد الحرام الی المسجد الأقصی الذي بارکنا حوله' الایة(بني اسرائیل ۱۵۰)

(۹۷) کما رواه البخاري فی باب حدیث المعرج عن مالک بن صعصعة (الجامع الصحیح ، رقم ۳۸۷)

دتولو انبیاء کرامو ﷺ اوشهداوو په اړه هم ده (٩٨)

اوددې سره سره دا عقیده درلودل لازمي ده چي پر تولو انبیاء کرامو ﷺ په شمول د نبي ﷺ په دې دنیا کي موت هم راغلی دی (٩٩)

(٩٨) لقوله تعالی ولا تقولوا لمن یقتل فی سبیل الله اموات بل احیاء ولکن لا تشعرون (بقرة ١٥٤) قال الامام القرطبی فی تفسیر هذه الایة واذا کان هذا فی الشهداء فالانبیاء احق و اولی بذلک ونصوص العلماء فی حیاة الانبیاء کثیرة (التذکرة للقرطبی فی بین حدیث . صعقه) ومثله قال الامام السیوطی فی انباه الاذکیاء فی حیاة الانبیاء (ص ١٢١) واما الادلة من الاحادیث فما روی عن انس بن مالک قال قال رسول الله ﷺ واما الادلة من الاحادیث فما روی عن انس بن مالک قال قال رسول الله ﷺ الانبیاء احیاء فی قبورهم یصلون (مجمع الزوائد ومنبع الفوائد ٨ . ٢١١ . باب ذکر الانبیاء) وروی عن ابی هریرة رضی الله عنه عن النبی ﷺ قال من صلی علی قبری سمعته ومن صلی علی نائیا ابلغته رواه البیهقی فی شعب الایمان (مشکاة المصابیح ٩٣٤) شعب الایمان البیهقی ١٥٨٣ . ٢١٨ . ٢ وروی عن ابی هریرة رضی الله عنه قال قال رسول الله ﷺ لیهبطن عیسی بن مریم اماما مقسطا . ولیاتین قبری حتی یسلم علی ولاردن علیه (الجامع الصغیر ٧٧٤٢) وقد الف الامام ابو بکر احمد البیهقی رسالة علی حیاة الانبیاء واثبت فیها حیاتهم بایراد تسعة عشر احادیث من شاء فلیراجع ثمه واما الدلیل علی اتفاق اهل السنة قال الاستاذ ابو منصور البغدادی قال المتکلمون المحققون من اصحابنا ان نبینا حی بعد وفاته (نیل الاوطار ١٠ . ٥) وقال الامام ابو القاسم القشیری . عما حکی عنه وعن اصحابه یقولون ان محمدا ﷺ لیس نبی فی قبره ولا رسول بعد موته فبهتان عظیم وکذب محض لم ینطق به منهم احد ولاسمع فی مجلس مناظرة ذلک عنهم ولا وجد فی کتاب لهم وکیف یصح ذلک وعندهم محمد ﷺ حی فی قبره (الرسائل القشیریة ص ١٠١ رسالة ترتیب السلوک) وقد ذکر الامام السیوطی اقوال العلماء فی کتابه انباه الاذکیاء حتی قال ونصوص العلماء فی حیاة الانبیاء کثیرة (ص ١٤١)

(٩٩) لقوله تعالی کل نفس ذائقة الموت (آل عمران ١٨٥) وقال تعالی انک میت وانهم میتون (الزمر ٣٠) فلاتعارض بین العقیدة المذکورة والآیتین

## (١١) علم الاولين والاخرين[١٠٠]

حضرت رسول کریم ﷺ ته تر ټولو مخلوقاتو زیات علم ورکول سوي وو. په مخلوقاتو کښي هیڅوک وهغو علوموته نه سي رسیدلای[١٠١]

خو بیا هم ددې څخه دا نه لازمیږي چي نبي ﷺ ته دي په هره زمانه کي د راتلونکو ټولو واقعاتو علم هم ورکول سوی وي. دیو واقعې غائبیدل د آن حضرت ﷺ دمشاهدې څخه د ده په علمي فراخ والی اوعلمي فضیلت کي نقص نه سي پیداکولای. لکه څرنګه چي دحضرت سلیمان ﷺ څخه هغه خبره پټه وه کوم چي هدهدته پر هغه باندي اګاهي وه.

خو ددي څخه د حضرت سلیمان ﷺ په افضلیت اوزیات علم والا کیدوکي څه نقصان نه دی راغلی.

---

(١٠٠) قال الامام الشعراني فی الیواقیت والجواهر ویوٴید ذلک قوله ﷺ فی حدیث" وضع الله تعالی یده بین ثدیي (ای کما یلیق بجلاله) فعلمت علم الاولین والاخرین" (٢ ٢١)

(١٠١) عن ابن عباس قال قال رسول الله ﷺ اتاني ربي عزوجل اللیلة فی احسن صورة احسبه . یعني فی النوم . الی قوله . فوضع یده بین کتفي حتی وجدت بردها بین ثدیي . اوقال نحری فعلمت مافی السموات وما فی الارض (مسند احمد . ٣٦٨ ١ـ سنن الترمذي . رقم ٣٢٤٧ـ کنزالعمال . رقم ٤٤٣٢١) وروی البخاري عن عائشة رضي الله عنها . قول النبي ﷺ . ان اتقاکم واعلمکم بالله انا (رقم ٢٠)

**سوال**: آیا ونبي ﷺ ته علم غیب هم وو؟

**خواب**: علم غیب صرف او صرف د الله تعالی صفت د کمال دی دا صفت وهیڅ مخلوق ته نه دی حاصل، که څوک دا صنفت (بیله تاویله) د یو مخلوق لپاره ثابت کړي نو هغه مشرک او کافردی لکه څرنګه چي په قرآن مجید کي د الله تعالی ارشاد دی ﴿وَلِلّٰهِ غَيْبُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ﴾ (۱۰۲)

**ترجمه**: د اسمان او مځکي د خبرو علم په الله تعالی پوري خاص دی، همدارنګه د الله تعالی ارشاد دی.

﴿وَعِنْدَهٗ مَفَاتِحُ الْغَيْبِ لَا يَعْلَمُهَا اِلَّا هُوَ﴾ (۱۰۳)

یعني د پټو خبرو علم د الله تعالی څخه ماسوا هیڅوک نه پیژني په بل ځای کښي دالله ﷻ ارشاد دی

(قُلْ لَّا اَقُوْلُ لَكُمْ عِنْدِيْ خَزَائِنُ اللّٰهِ وَلَا اَعْلَمُ الْغَيْبَ وَلَا اَقُوْلُ لَكُمْ اِنِّيْ مَلَكٌ) (۱۰۴)

**ترجمه**: یعني ای نبي ﷺ ته ووایه خلګو ته چي زه دا نه وایم چي زماسره د الله تعالی خزانې دي اویادا چي زه په غیبو خبریم اونه زه دا وایم چي زه فرښته یم.

(۱۰۲) قال تعالی ولله غیب السموات والارض وما امر الساعة الا کلمح البصر او هو اقرب ان الله علی کل شئ قدیر (النحل ۷۷)

(۱۰۳) قال تعالی ولله غیب السموات والارض وما امر الساعة الا کلمح البصر او هو اقرب ان الله علی کل شئ قدیر (النحل ۷۷)

(۱۰۴) قال تعالی وعنده مفاتح الغیب لا یعلمها الا هو ط وما تسقط من ورقة الا یعلمها الخ لایة الانعام ۵۹

په بل ځای کې د الله تعالی ارشاد دی ﴿لَوْ كُنْتُ أَعْلَمُ الْغَيْبَ لَاسْتَكْثَرْتُ مِنَ الْخَيْرِ وَمَا مَسَّنِيَ السُّوءُ﴾[١٠٥]

**ترجمه**: که چیري زه په غیبو خبر وای نو ما به ډیري فائدې حاصلې کړي وای او ماته به څه نقصان نه وای رسیدلی د دې ټولو آیاتو څخه معلومه سوه چې علم الغیب کیدل صرف د الله تعالی صفت دی. دا صفت وڅه مخلوق ته حاصل نه دی. ولې چې عالم الغیب هغه څوک کیدای سي چې بیله څه خبروکولو د غیب په ټولو خبرو باندې خبر وي او د ده دا علم ذاتي وي. نبي ﷺ چې امت ته څه د غیب خبرې ور رسولې دي د هغو خبرو الله تعالی وده ته خبر ورکړی دی، او د هر غیب وده ته علم نه وو[١٠٦]

لکه څرنګه چې داسې ډیري واقعاتې په احادیثو کې موجودې دي چې دلالت د ده پر عدم عالم الغیب[١٠٧] کیدو

(١٠٥) قال تعالى: قل لا اقول لكم عندي خزائن الله ولا اعلم الغيب ولا اقول لكم اني ملك الاية (الانعام ٥٠)، (١٠٦) الاعراف ١٨٨، (١٠٧) قال تعالى فلا يظهر على غيبه احدا الامن ارتضى من رسول (جن: ٢٦ ، ٢٧) وقال الملاعلى قاري في شرح الفقه الاكبر . ثم اعلم ان الانبياء عليهم السلام لم يعلموا المغيبات من الاشياء الا ما علمهم الله تعالى احيانا . وذكر الحنفية تصريحا بالتكفير باعتقاد ان النبي عليه الصلاة والسلام يعلم الغيب لمعارضة قوله تعالى: لايعلم من في السموات والارض الغيب الا الله ط ومايشعرون ايان يبعثون (النمل ٦٥)، وقال في المهند على المفند لايجوز هذا الاطلاق (اى اطلاق عالم الغيب) وان كان بتاويل لكونه موهم بالشرك (ص ٢٤٣)

باندي کوي په هغو کي پر حضرت عائشي (رضی الله تعالی عنها) باندي د تهمت لګولو قصه هم ده له هم دي کبله ونبي ﷺ ته د عالم الغیب لقب ورکول او استعمالول جائز نه دی ولی چي په دي کي د شرک شبه ده.

# ﴿معجزي﴾

**سوال**: معجزه څه ته ویل کیږي؟

**ځواب**: دنبي یارسول پر لاس باندي (د نبوت برحق ثابتولو لپاره) هغه عجیبه اوغریبه خبره کوم چي دعامو معمولاتو خلاف اود ظاهري اسبابو بغیر ښکاره سي هغي ته معجزه ویل کیږي[(١٠٨)]

**سوال**: آیا ټولو پیغمبرانو ته معجزي ورکول سوي وي.

**ځواب**: هو! الله تعالی چي کوم پیغمبر هم ودنیا ته را استولی دی هغه ته یي معجزې هم ورکړي دي ددي لپاره چي د خلګو په وړاندي د ده پیغمبري په ښکاره سره ثابته سي[(١٠٩)]

(١٠٨) قال الملا علی قاري: ان المعجزة امر خارق للعادة کاحیاء میت واعدام جبل علی وفق التحدی وهو دعوی الرسالة (شرح الفقه الاکبر، ص ٦٩).

(١٠٩) قال تعالی: لقد ارسلنا رسلنا بالبینات وانزلنا معهم الکتاب والمیزان (الحدید ٢٥).

لکه څرنګه چې پر حضرت ابراهيم عليه السلام باندې د اور يخيدل[١١٠]

وحضرت صالح عليه السلام ته د غره څخه يوه حامله اوښه پيداکيدل[١١١]

وحضرت داؤد عليه السلام ته د اوسپنې نرم کېدل[١١٢]

وحضرت سليمان عليه السلام ته د پيريانو او بادونو تابعداره کېدل[١١٣]

وحضرت موسى عليه السلام ته د لکړې يو افعى مارجوړېدل اوپه خپل بغل کې د لاس اېښولو او د باندې راوړلو څخه لاس بريښيدل[١١٤]

وحضرت عيسى عليه السلام ته د الله تعالى په حکم سره مړه ژوندي کول او د موره پيداسوى ړوند د الله تعالى په حکم سره خپل مبارک لاس تېرول او بيرته بنا کېدل او نور[١١٥]

(١١٠) قال تعالى قلنا يانار كوني بردا وسلاما على ابراهيم (الانبياء ٦٩)

(١١١) قال تعالى والى ثمود اخاهم صالحا قال يقوم اعبدوا الله مالكم من اله غيره قد جاءتكم بينة من ربكم هذه ناقة الله لكم آية الاية الاعراف ٧٣) (١١٢) قال تعالى والنا له الحديد ان اعمل سابغات (سبا ١٠، ١١)

(١١٣) قال تعالى ولسليمن الريح غدوها شهر ورواحها شهر واسلنا له عين القطر ومن الجن من يعمل بين يديه باذن ربه سبا ١٢) (١١٤) قال تعالى والقى عصاه فاذا هي ثعبان مبين الاعراف ١٠٧ ـ الشعراء ٣٢) وقال تعالى ونزع يده فاذا هي بيضاء للناظرين الاعراف ١٠٨ ـ الشعراء ٣٣) (١١٥) قال تعالى اني جئتكم بآية من ربكم اني اخلق لكم من الطين كهيئة الطير فانفخ فيه فيكون طيرا باذن الله وابرئ الاكمه والابرص واحي الموتى باذن الله الاية آل عمران ٤٩)

**سوال**: زموږ خوږ نبي ﷺ ته الله تعالی کومي کومي معجزي ورکړي وی؟

**ځواب**: الله تعالی زموږ ونبي ته ډېري معجزې ورکړي وې چي یو څه یې دا دي

(**۱**) **شق القمر**: هرکله چي د مکې کفارو ونبي ﷺ ته وویل، که چیري تاسپوږمي دوه ځایه کړه نو موږ ایمان راوړوڅرنګه چي نبي ﷺ والله تعالی ته خواست وکړی اوبیایي د سپوږمي وطرفته په خپل ګوته مبارکه سره اشاره وکړه، نوهغه سپوږمي دوه ځایه سوه. کفارو ته پر دي باندي یقین راتلی اوپه ډېر حیرت سره بی پرخپلو سترګو ټوکران مښوول. اوسترګي به یي پاکولی او ورته کتل به یي. د مازدیګر اومابښام ترمنځ چي څومره وخت دی. هم دومره وخت سپوږمي دوه ځایه وه. دهغه وروسته بیا سپوږمي پر خپل أصلي حالت باندي جوړه سوه. دمکي مشرکینو داوویل چي تاپر موږ باندي جادو کړی وو لهذا موږ له دباندي څخه درا وتونکو مسافرو انتظار کوو بیا د هغه مسافرو څخه چي د دباندي څخه راځي پوښتنه کوو که هغو ددي خبرې تصدیق وکړی نو

يې موږ په رښتيا سره منو. څرنګه چې مسافر راغله نو هغو هم د شق القمر (د سپوږمي دوه ځايه کېدو) مشاهده او ليدنه بيان کړه. لکن د هغه سره سره دې کسانو ايمان نه راوړی او دا يې جادو وبلی[116]

(۲) **قرآن کريم**: نبي کريمﷺ ته تر ټولو لويه معجزه او تر قيامته پورې باقي پاته کېدونکې معجزه د قرآن مجيد عطاء او ورکړه ده. دارنګه يو عظيمه معجزه وهيڅ پېغمبر اونبي ته نه ده ورکړه سوې[117]

اونه يه ترقيامته پورې څوک جوړ ولای سي نه په انسانانو کي دا طاقت سته او نه په پيريانو کي[118]

---

(۱۱۶) قال تعالى: اقتربت الساعة وانشق القمر وان يروا اية يعرضوا ويقولوا سحر مستمر (القمر ۲،۱) وعن مجاهد عن ابن عمر ﷺ قال: انفلق القمر على عهد رسول الله ﷺ فقال رسول الله ﷺ اشهدوا (ترمذي، باب ماجاء في انشقاق القمر. ۴۱ و ۲) وعن ابن مسعود ﷺ قال: بينما نحن مع رسول الله ﷺ بمنى فانشق القمر فلقيتن فلقة من وراء الجبل وفلقة دونه فقال لنا رسول الله ﷺ اشهدوا، يعني اقتربت الساعة وانشق القمر (ترمذي ابواب التفسير، ۱۶۱: ۲) وعن انس ﷺ قال سال اهل مكة النبي ﷺ آية فانشق القمر بمكة مرتين فنزلت "اقتربت الساعة وانشق القمر" وان يروا آية يعرضوا ويقولوا سحر مستمر (الخ) ترمذي (۱۶۹: ۲)

وعن ابن مسعود ﷺ قال: انشق القمر على عهد رسول الله ﷺ فرقتين فرقة فوق الجبل وفرقة دونه (اى تحته) فقال رسول الله ﷺ اشهدوا (الجامع الصحيح للبخاري، ۷۲۱: ۲) (۱۱۷) قال تعالى: انا نحن نزلنا الذكر وانا له لحافظون (الحجر)

(۱۱۸) قال تعالى: قل لئن اجتمعت الانس والجن على ان ياتوا بمثل هذا القرآن لاياتون بمثله ولوكان بعضهم لبعض ظهيرا (اسراء: ۸۸)

(۲) **صلح حدیبیه**: د صلح حدیبیه[۱۱۹] پر موقع باندي یو وار د صحابه کرامو دکومو چي تعداد تقریبا یونیم زر وو د ابو دکموالی شکایت پیدا سو. اودنبي ﷺ په خدمت کي حاضر سوه، اود اوبو دنه پیداکیدو شکایت یي وکړی د نبي ﷺ ومخ ته یو لوښی د ابو پروت وو نبي ﷺ په هغه اوبو سره اودس تازه کړی اوهغه لوښي ته یي خپل مبارک لاس وروا چوی

نو د ده مبارک دگوتو ترمابین اوبه جاري سوی تر داسي وخته پوري چي ټولو حضراتو د هغه لوښي څخه اوبه وچښلې او اودسونه یي په تازه کړه.

حضرت جابر رضی الله عنه فرمایي که چیري په دغه ورځ موږ یو لک هم وای نو زموږ ټولو به بس سوي وای.

(۴) **د درختی حکم منل**:[۱۱۹] یو وار وحضرت نبي کریم ﷺ ته د قضاء حاجت ضرورت پیدا سو اوپه هغه ځای کي څه د ستر ځای نه وو د یو شیلې پر غاړه دوې درختي وي جلاجلا نبي ﷺ د یوې درختي ښاخونه ونیول ورته وي ویل، د الله تعالی په حکم سره رعاخبره

---

(۱۱۹) رواه البخاري في الجامع الصحيح رقم ۱۳۵۲ عن جابر رضي

ومنه نو هغه درخته دنبي ﷺ سره روانه سوه لکه
څرنګه چي يوفرمانبرداره اوښه د سړی سره روانه وي.
تر داسي وخته پوري چي نبي ﷺ دوهمې درختي ته
راغلی او دهغي ښاخونه يي هم ونيول او ورته وي ويل
چي دالله تعالی په حکم سره زما اطاعت وکړه څرنګه
چي دواړې درختي سره يو ځای سوي نو نبي ﷺ خپل
حاجت پوره کړی د هغه وروسته بيرته دواړې درختي
وخپل خپل ځای ته ولاړې.

(۵) **د غرونو سلام کول**: حضرت علي رضی الله عنه فرمايي چي زه
د نبي ﷺ سره په مکه مکرمه کي وم يو وخت د نبي ﷺ
سره وصحراته ووتم.

نوچي کومه درخته اوکوم غر به ومخته راتلی هغه به دا ويل:
«اَلسلامُ عَلَيکَ يَارَسُولَ اللّٰه»[۲۰]

ددي څخه علاوه نوري معجزې هم د احاديثو په کتابو
کي موجودي دي دکوم څخه چي د نبي ﷺ د نبوت
ښکاره تاکيد کيږي.

---

(۲۰) رواه مسلم رقم ۳۰۱۲ عن جابر

www.taleemulislam-radio.com

# (۵) ﴿پنځم باب﴾

قیامت، حشر، اونشر

**سوال**: د موت (مرگ) حقیقت څه دی؟

**ځواب**: مرگ د الله تعالی یو مخلوق دی کوم چي الله تعالی پیدا کړي دی[۱۲۱]

هرکله چي پریو ساه لرونکي باندي راسي نو د هغه د جسم څخه د روح رابطه ختم کړي. دا وهر ساه لرونکي لره ضرور راځي[۱۲۲]

د مرگ په راتلو سره میت دعالم دنیا څخه وعالم برزخ ته نقل کیږي.

**سوال**: د مرگ په باره کي اسلامي عقېده څه ده؟

**ځواب**: دمرگ په باره کښي زموږ عقېده دا ده چي د هرنفس لپاره یو وخت مقرر دی. کوم چي الله تعالی مقرر کړی دی.

---

(۱۲۱) رواه الترمذي عن علي ﷺ حديث: ۳۶۳۵ ،ودارمي ،رقم ص_۲۵ ج ۲۱ ،والترغيب،والترهيب ۲:۲۲۹

(۱۲۲) قال تعالى: الذي خلق الموت والحياة ليبلوكم ايكم احسن عملا (ملک ۲)

نوهيڅ نفس ته هم دهغه دمقرره وخت څخه يو ګوړې هم مخكې ياوروسته نه راځي [۱۲۳]

اودامرګ وهر ساه لرونكي لره ضروربالضروړراځي هيڅ ساه لرونكى شى دمرګ څخه نه سي پاته كيدلاى [۱۲۴]

مرګ دمسلمان مؤمن لپاره دنعمت اوراحت سبب دى كوم چي ديو كافر اونافرمانه لپاره دعذاب اوعقاب ابتداء وي [۱۲۵]

دقيامت په ورځ چي هر كله اهل جنت وجنت ته اوهل جهنم وجهنم ته ورسيږي نو به مرګ ديو برګ پسه په شكل كښي راوړل سي اودجنت او دوږخ په منځ كښي به حلال كړل سي بيا به جنتيان په جنت كښي اودوږخيان به په دوږخ كښي دهميشه لپاره پاته سي [۱۲۶]

**سوال**: برزخ څه دى؟

---

(۱۲۳) قال تعالى: كل نفس ذابقة الموت(آل عمران: ۱۸۵)

(۱۲۴) قال تعالى: فاذا جاء اجلهم لايستاخرون ساعة ولايستقدمون(نحل: ۶۱)

(۱۲۵) قال تعالى: اينما تكونوا يدرككم الموت ولو كنتم فى بروج مشيدة(النساء: ۷۸

(۱۲۶) الدنيا سجن المؤمن وجنة الكافر (رواه ابن ماجه كتاب الزهد، رقم ۴۱۱۳، [مكتبة علمية بيروت] سنن الترمذي ،رقم ۲۳۲۹ ، مسلم ، رقم ۲۹۵۶ مسند احمد ۲: ۳۲۳)

**ځواب**: هر انسان د پيداکيدو څخه وروسته تر دزو دورو تيريږي

(۱) د پيداکيدو څخه وروسته تر مرگ دمخه. دا عالم دنيا ده.

(۲) د مرگ وروسته بيا د قيامت تر راتلو پوري دا دعالم برزخ دوردي.

که چيري مړی په قبر کښي وی نو هغه قبر دده لپاره برزخ دی، اوکه د يو ځيرونکي حيوان په نس کي وي غرض دا چي هر ځای وي د هغه لپاره هغه ځای برزخ دی[۱۲۷]

(۳) د قيامت د قائميدو څخه وروسته بيا د هميش

---

(۱۲۷) عن ابي سعيد الخدري ﷺ (فی حديث طويل) يوتی بالموت يوم القيامة علی صورة کبش املح فيذبح بين الجنة والنار [متفق عليه] رواه البخاري فی الجامع الصحيح ، رقم ۴۷۳۰ ـ مسلم ،رقم ۲۸۴۹) وعن ابن عمر ﷺ قال قال رسول الله ﷺ اذا صار اهل الجنة الی الجنة واهل النار الی النار جيئ بالموت حتی يجعل بين الجنة والنار ، ثم يذبح ، ثم ينادي مناد يا اهل الجنة خلود لاموت ويا اهل النار خلود لاموت فيزداد اهل الجنة فرحا االی فرحهم ويزداد اهل النار حزنا الی فرحهم ويزداد اهل النار حزنا الی حزنهم (الجامع الصحيح للبخاري ، رقم ۶۵۴۸ ، ص ۲۰۰ ـ ج ـ ۴ فتح الباري، رقم ۶۵۴۸ ، ص ـ ۴۱۵ ج ـ ۱۱ کنز العمال ، رقم ۳۹۴۵۰ . ص ـ ۱۰ ج ۱۴

لپاره دا دور دارالبقاء او دار آخرت دی.[۱۲۸]

**سوال**: د مرګ وروسته په عالم برزخ کي د انسان سره څه معامله کیږي؟

**ځواب**: د مرګ وروسته هر میت که دی مسلمان وي اوکه کافر وي عالم برزخ ته رسیږي. چي هلته بیا د مؤمن روح ته د زیری اوخو شخبریانو سره په ډیر اعزاز او اکرام سره پراوو آسمانو باندي وړل کیږي اود الله تعالی په حکم سره د ده نوم په علیین کي لیکل کیږي اوکه خدا نخواسته کافر وي نو د هغه روح په ډیر تکلیف سره د ده دجسم څخه ایستل کیږي اوپه یو ډیره بدبویه ټوکر کي بند کړي او آسمانو ته یي یوسي.لیکن دآسمان دروازې وهغه ته نه خلاصیږي، اود الله تعالی په حکم سره د هغه روح د مځکي تر ټولو په تنګه حصه کي غورځول کیږي.نو بیا مؤمن یاکافر چي هر کله په قبر کي ښخیږي نو د ده روح بیرته د ده وجسم ته راوړل کیږي. او منکر اونکیر د هغه څخه سوال کوي که چیري

(۱۲۸) قال فی شرح العقیدة الطحاویة ، اعلم ان عذاب القبر هو عذاب البرزخ فکل من مات وهو مستحق للعذاب ناله نصیبه منه قبر اولم یقبر اکلته السباع اواحترق حتی صار رمادا نسف فی الهوا اوصلب اورق فی البحر وصل الی روحه وبدنه من العذاب مایصل الی المقبور(ص ۴۵۱)

میت مؤمن وي نو د منکر او نکیر د سوالونو جوابونه صحیح ورکوي. اوکه کافر وي نو د سوالونو د جوابو څخه لاعلمي ښکاره کوي. څرنګه چې سوال او ځواب وسي نو د مؤمن لپاره دجنت یو فرش غوړول کېږي او د جنت وخواته یو دروازه ورته خلاصه سي، او قبر د ده لپاره تر کومه ځایه چې د ده سترګي کار کوي فراخه سي. کوم چې بر عکس د کافر لپاره د اور یو فرش وغوړول سي او د جهنم دروازه د ده په قبر کي را خلاصه سي چي ده ته په قبر کي د جهنم ګرمي او د اور تاو رسېږي او پرده باندي قبر دومره تنګ کړل سي چي د ده د دواړو طرفو پښتي یو په بل کي سره ننوزي (العیاذ بالله تعالی)[129] د ټولو اهل السنة والجماعة عقیده ده چي عذاب قبر او د برزخ راحت خوشحالي او زیری ورکول کېږي او کفارو منافقینو اوګناه ګارانو ته عذاب او تکلیف ورکول کېږي[130]

(۱۲۹) قال فی شرح العقیدة الطحاویة. فالحاصل ان الدور ثلاث دار الدنیا ودار البرزخ ودار القرار ص ۴۵۲

(۱۳۰) کماورد فی روایة عن براء بن عاذب ﷺ قال کما فی جنازة فی بقیع الغر قد فاتانا النبي ﷺ فقعد وقعدنا حوله کان علی روٴسنا الطیر وهو یلحد له فقال اعوذ بالله من عذاب القبر ثلاث مرات. ثم قال ان العبد المؤمن اذا کان فی اقبال من الاخرة وانقطاع من الدنیا نزلت الیه ملائکة من السماء بیض الوجوه کان وجوههم الشمس معهم کفن من اکفان الجنة وحنوط الجنة حتی یجلسوا منه مد البصر. ثم یجیٔ ملک الموت ﷺ حتی یجلس عند رأسه فیقول ایتها النفس الطیبة اخرجی الی مغفرة من الله ورضوان قال فتخرج تسیل کما تسیل القطرة من الفاء. الخ رواه احمد ۲۸۷ .۲۸۸ ۴ ـ ابو داوٗد رقم ۴۷۵۳، وقال فی شرح الفقه الاکبر واعادة الروح الی العبد ای جسده بجمیع اجزائه او بعضها مجتمعة او متفرقة فی قبره حق ص ـ ۹۰.

**سوال**: منکر نکیر څه دی؟

**ځواب**: دا ملائکي دي. کوم چي د مړي څخه په عالم برزخ کي دري سوالونه کوي.

(۱) ستا رب څوک دی!

(۲) ستا دین څه دی!

(۳) ستا رسول څوک دی!

ځرنګه چي د اهل سنت والجماعت عقیده ده چي هر کله چي یو میت په قبر کي ایښودل کیږي نو د هغه روح بیرته جسم ته راوړل کیږي. اومنکر نکیر د هغه څخه دا دري مذکوره سوالونه کوي. (۱۳۱)

**سوال**: دقیامت حقیقت څه دی؟

**ځواب**: هر کله چي په دي دنیا کي یو هم د الله تعالی نوم اخستونکي نه سي پاته کفر او شرک او نافرماني وغوړیږي نود الله تعالی په حکم سره حضرت اسرافیل عليه السلام شپیلي

---

(۱۳۱) قال تعالی: النار یعرضون علیها غدوا اوعشیا ویوم تقوم الساعة ادخلوا آل فرعون اشد العذاب (المومن ۴۶) وقال تعالی اليوم تجزون عذاب الهون بما کنتم تقولون علی الله غیر الحق • الاية (انعام ۹۳) وقال تعالی ولوتری اذیتوفی الذین کفروا الملائکة یضربون وجوههم وادبارهم وذوقوا عذاب الحریق (الانفال ۵۰) وعن عبدالله بن عباس رضي الله عنه قال مر النبي ﷺ بقبرین فقال انهما یعذبان وما یعذبان فی کبیر. الحدیث (الجامع الصحیح للبخاري، رقم ۲۱۸ ـ مسلم، رقم ۲۹۲)

پوکي او مځکه به ټکړه ټکړه سي. او غرونه به داوسپنو دبخرکو په څیر والوزي، غرض دا چي ټوله دنیا به فناسي دکوم چي د ډیر درد ناکه او بیریدونکي آواز څخه یي ټوله ساه لرونکي شیان مړه کېږي او د الله تعالی څخه ماسوا به هیڅوک پاته نه سي [۱۳۲]

بیا به دوهم وار شپیلۍ پوکړی سي نو بیا به ټول د حساب اوکتاب لپاره ژوندي کړل سي هم د دي حالت نوم قیامت اوحشر او نشر دی [۱۳۳]

**سوال:** قیامت کله راځي؟

**ځواب:** د قیامت خبره انبیاء کرام علیهم السلام وخپلو امتوته کړیده او هر پیغمبر خپل امت ته دا خبره رسولیده لیکن د الله تعالی پیغمبر ﷺ چي راغلی نو دا خبره یي وښوول چي قیامت نژدي را رسیدلی دی [۱۳۴]

---

۱۳۲) لما فی حدیث براء بن عاذب المذکور آنفا . فتعاد روحه فی جسده ویاتیه ملکان فیجلسانه فیقولان من ربک ، فیقول هاه هاه .فیقولان له مادینک .فیقول هاه هاه لاادري . فیقولان له من هذا الرجل الذي بعث فیکم .فیقول هاه هاه لاادري .فینادي مناد من السماء ان کذب عبدي فافرشوه من النار وافتحوا له بابا الی النار فیاتیه من حرها وسمومها ویضیق علیه قبره حتی تختلف فیه اضلاعه . الخ (سنن ابی داوٗد .کتاب السنة .رقم ۴۷۵۳)

(۱۳۳) لاتقوم الساعة حتی یقال فی الارض الله الله (مسلم ۸۴ ۱) لاتقوم الساعة الاعلی شرار الناس (الدر المنثور . ۵۴ ۶)

(۱۳۴) وقال تعالی ثم نفخ فیه تارة خری فاذاهم قیام ینظرون (الزمر ۶۸) وقال تعالی ثم انکم یوم القیامة تبعثون (المومنون: ۱۶)

اوزه په دي دنیا کي آخري رسول یم. لیکن داچي قیامت کله راځي! د دي خبرې صحیح تاریخ څو څه کوي تر کال اوصدې پوري د الله تعالی څخه علاوه بل هیڅ چاته معلوم نه دی[۱۳۵]

دایو داسي پټ راز دي چي الله ﷻ چي خالق دټولو کائناتو دي وهیڅ نبي یا ملائکې ته هم نه دی وربښولی[۱۳۶]

هو! الله تعالی د حضوراقدس ﷺ په ذریعه سره دقیامت څه نښانیاني رابښوولي دي. په هغو کي اکثره ښکاره سوي یو څو غټې علاماتي لاتراوسه ښکاره کیدل پاته دي[۱۳۷]

**سوال**: د قیامت نښانیاني څه دي؟

**ځواب**: د قیامت نښانیاني پر دوه ډوله دي.

(۱۳۵) قال تعالی: اقتربت الساعة وانشق القمر (القمر ۱) وعن انس قال قال رسول الله ﷺ بعث انا والساعة کهاتین. واشار ابو داؤد بالسبابة والوسطی فما فضل احدهما علی الاخری (ترمذي، ابواب الفتن، ۴۴ ۲)

(۱۳۶) قال تعالی: ان الله عنده علم الساعة (لقمان ۳۴) وقال تعالی یسئلونک عن الساعة ایان مرساها قل انما علمها عند ربي لایجلها لوقتها الاهو الایة (الاعراف ۱۸۷)

(۱۳۷) کما ورد فی حدیث جبرئیل ما المسؤل عنها باعلم من السائل (الجامع الصحیح للبخاري، رقم ۵۰ مسلم، رقم ۸، ۱۰ ـ ابوداؤد، رقم ۴۶۹۰ ـ نسائي، رقم ۴۹۹۰ ـ ابن ماجه، رقم ۶۳، ۶۴ ـ مسند احمد، ص ـ ۱۲۹، ص ـ ۱۶۳ ـ ج ـ ۴)

**اول**: كشني نښانياني، اولوى نښانياني.

**علامات صغرى**: يعني هغه كشني نښانياني كوم چي ښكاره سوي خو دي ليكن تر اوسه پوري انتهاء ته نه دي رسيدلي ورځ په ورځ په هغو كي زياتوالى راځي ترداسي وخته پوري چي علامات كبرى يعني هغه غټي نښانياني ښكاره كيږي

علامات صغرى: خوډيري دي په كومو كښي چي څه نښانياني ذكر كيږي، نبي كريمﷺ وفرمايل: دقيامت څخه مخكښي شپږ نښانياني ښكاره كيږي.

(١) زما وفات كېدل.

(٢) د بيت المقدس فتح كېدل.

(٣) په مسلمانانو كي يو وبائي مرض.

(۴) د مال او دولت دومره زياتېدل چي خلگ به سل ديناره هيڅ نه بولي

(۵) د عربو په ملك كي په كور كور كي د فتني داخليدل

(۶) د مسلمانانو اوعيسائيانو په منځ كي صلح كيدل اوبيا د عيسائيانو د طرفه څخه د هغي خلاف ورزي كول[١٣٨]

په دي شپږو مذكوره علامو كي پنځه اوس هم ښكاره سوي دي چي د نبي كريمﷺ رحلت وسو.

---

(١٣٨) الاشاعة للبرزنجي ص ـ ۴

بیا د حضرت عمر ﷺ په زمانه کي بیت المقدس فتح سو. او د حضرت عمر ﷺ د خلافت په دوره کي د عمواس پر مقام باندي داسي طاعون راغی چي په دري ورځې کي دیارلس زره مسلمانان وفات سوه کوم چي ځلرمه او پنځمه نښاني د حضرت عثمان ﷺ په دور خلافت کي ښکاره سوې چي د مسمانانو سره د مال او دولت خوند په خروارو سو. په یوه حدیث کي راغلي دي چي پر خلګو باندي به داسي زمانه راسي چي پر دین باندي د قائمیدونکي چا حالت به داسي وي لکه د ارو سکروټه چي پلاس کي نیسي [١٣٩]

تجارت به زیات سي تر داسي وخته چي ماینه به د میړه سره په تجارت کي شریکه او مدد ګاره وي دخپلوانو سره به د تعلق پرېښولو واقعاتي زیاتي سي. دلیکلو رواج به زیات سي ددرواغو دشاهدي ډېر والي به وي [١٤٠]

---

(١٣٩) عن عوف بن مالک قال: اتیت النبي ﷺ فی غزوة تبوک وهو فی قبة من ادم، فقال: اعدد ستا بین یدي الساعة: موتي، ثم فتح بیت المقدس، ثم موتان یاخذ فیکم کقعاص الغنم. الحدیث (بخاري: ٣١٧٦)

(١٤٠) عن انس عن النبي ﷺ یاتي علی الناس زمان الصابر فیهم علی دینه کالقابض علی الجمر (ترمذي، ٢: ٥٠)

دقومو اودقبیلو مشران به منافقان اورزیلان اوفاسقان وي،
د خپلوانو اوقریبانو حقوق به ترپښو لاندې کیږي اود
بیګانه وو خلګو سره به ښه سلوک ګول کیږي.
د مایني فرمانبرداري او د مور او پلار نافرماني به کیږي [۱۴۱]
سلام به صرف وخپلو شناخته ووته کوي [۱۴۲]
شپنیان او داسي نور دکمي درجي خلګ به د فخر په
طریقه سره لوړ لوړ عمارتونه اوبنګلې جوړ وي [۱۴۳]
دشرابو نوم به نبیذ (شربت) دسود نوم به تجارت،
اودرشوت نوم به هدیه ایښول کیږي او دا به حلال کنې.

---

(۱۴۱) عن ابن مسعود عن النبي ﷺ ان بين يدي الساعة تسلي الخاصة وفشو التجارة حتى تعين المراة زوجها على التجارة وقطع الارحام وفشو القلم وظهر الشهادة بالزور

(۱۴۲) عن ابي هريرة ؓ عن النبي ﷺ، اذا اتخذ الفئ دولا ولاامانة مغنما والزكاة مغرما وتعلم لغير الدين واطاع الرجل امراته وعق امه ودنى صديقه واقصى اباه وظهرت الاصوات في المساجد وساد القبيلة فاسقهم وكان زعيم القوم ارذلهم واكرم الرجل مخافة شره الخ (ترمذي، ۲۲۱۶)

(۱۴۳) عن ابن مسعود ؓ سمعت رسول الله ﷺ يقول لاتقوم الساعة حتى يكون السلام على المعرفة وحتى تخذ المساجد طرقا لايسجد لله فيها حتى يتجاوز حتى يبعث اعلام بالشيخ بريدا بين الافقان وحتى ينطلق الفجر الى الارض النامية فلا يجد فضلا (الدر المنثور ،۵۳ ۶ ـ كنز العمال ،رقم ۳۸۵۸۴، ص ۲۴۶ ـج ـ۴۱)

ښځي به د ښځو سره اونر به د نرو سره ودونه کوي[۱۴۴]
ښځي به داسي باريکي اوچسپي جامي اغوندي چي په هغو کي به دوی لڅي ښکاری او د دوی سرونه به د بختي اوښ د بوک رنګه پورته ښکاري، اودوی به خپلي ملاوي اوکناټي ښوروي رواني به وي علامات صغری نوري هم په احاديثو کي موجودي دي د هغو ټولو خبر حضور اقدس ﷺ په هغه زمانه کي ورکړی وو کوم چي د داسي خبرو تصور هم مشکل وو ليکن اوس ټوله مخلوق دا نښانياني پخپلو سترګو سره ويني خپله به هم د نرانو وطرفته مائله وي، اونران به خپل وطرفته متوجه کوي[۱۴۵]

**سوال**: لوی علاماتي (نښاني) دقيامت کومي دي؟

**ځواب**: دقيامت لوی لوی نښانياني دادي:

(۱) **ظهور مهدي**: د مسلمانانو اخيري امير به حضرت

---

(۱۴۴) كما ورد في حديث جبرئيل وان ترى الحفاة العراة العالة رعاء شاء يتطاولون في البنيان . الخ (سنن أبوداؤد رقم ۴۶۹۵ ص ۲۲۳ ج ۴)

(۱۴۵) قال في الاشاعة ومنها اذا استحلت هذه الامة الخمر بالنبيذ والربا بالبيع والسحت بالهدية ومنه اذا استغنى النساء بالنساء والرجال بالرجال فبشرهم بريح حمراء (ديلمي عن انس بحواله الاشاعة ص ۷۲)

امام مهدي عليه السلام وي. د ده د راتلو به هغه وخت وي چي د دجال د راتلو وخت دی حضرت امام مهدي عليه السلام د حضوراقدس ﷺ د اولاد څخه دی د ده نوم به محمد او د پلار نوم به يي عبدالله وي (١٤٦)

دده قد به اوږد وي. جسم به يي مضبوط او تکړه وي پزه به يي نري او جګه وي (١٤٧)

په ژبه کي به لږ بنديږي هر کله چي دی دژبي بنديده په عذاب کي نو دی به پر خپلو ورنو باندي لاسونه مړي (١٤٨)

دی به د څلويښتو کلو په عمر کي ښکاره سي د هغه وروسته به اووه يا اته کاله نور ژوندی وي (١٤٩)

---

(١٤٦) عن ابي هريرة رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ صنفان من امتي من اهل النار لم ارهم بعد. نساء كاسيات عاريات مائلات مميلات على روسهن امثال اسنمة الابل لايدخلن الجنة ولايجدن ريحها . الخ (مسلم ٢١٢٨_ مسند احمد. ٤٤٠ ٢)

(١٤٧) عن زر عن عبد الله قال قال رسول الله ﷺ لاتذهب الدنيا حتى يملك العرب رجل من اهل بيتي يواطي اسمه اسمي واسم ابيه اسم ابي . الحديث (رواه الترمذي .٤٦ ٢) وقال في حديث سفيان .لاتذهب الدنيا .اولا تنقضي الدنيا حتى يملك العرب رجل اهلى بيتي . يواطى اسمى (ابو داوٗد ٤٢٨٥)

(١٤٨) عن ابى سعيد الخدري رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ المهدي مني اجلي الجبهة واقني الانف (ابوداوٗد : ٤٢٨٥)

(١٤٩) قال الامام البرزنجي فى الاشاعة في لسانه ثقل واذا بطا عليه الكلام ضرب فخذه الايسور بيده اليمني (ص ٨٩)

(۲) **ظهور دجال**: دجال به یو درواغجن څوک وي دکوم چي به چپه سترګه ړنده وي او ویښتان به یي دحبشیانو رنګه یعني (پیچلي پیچلي) وي او دده پرتندي باندي به، ک. ف. ر. لیکلي وي[۱۵۰]
یو غټ خر به د سپریدو لپاره ورسره وي دکوم رنګ چي به ډیر سپین وي. او د ده دخره د دواړو غوږو ترمنځ به داویا لاسه قدره فاصله وي د ده رفتاربه دوریځي او د باد په شان تیزوي[۱۵۱]
دی به د عراق او د شام په منځ کي ښکاره کیږي تر ټولو دمخه به د نبوت دعوه وکړي د ده څخه به یو اور وي چي وهغه ته به دی جهنم وایي او د ده سره به یو باغ وي چي وهغه ته به دی جنت وایي لیکن حقیقت به ددي برعکس وي.

(۱۵۰) عن ابي سعید الخدري ﷺ قال قال رسول الله ﷺ المهدي اجلى الجبهة واقنى الانف، یملا الارض قسطا وعدلا کما ملئت جورا وظلما یملک سبع سنین (ابو داؤد ۴۲۸۵)

(۱۵۱) عن انس عن النبي ﷺ قال مابعث نبي الا انذر امته الاعور الکذاب الا انه اعور وان ربکم لیس باعور وان بین عینیه مکتوب ک.ف. ر. (بخاري ۷۱۳۱، مسلم ۲۹۳۳) وعن النواس بن سمعان ﷺ قال ذکر رسول الله ﷺ الدجال ذات غداة (الى قوله) انه شاب جعد قطط عینها طافئة (مسلم ۲۹۳۷_ ترمذي ۲۲۴۵ _ ابن ماجه ۴۰۷۵)

دی به سره دخپله لښکره پر بي شماره هیوادو اوملکو باندي گرځی اوفساد ته به وده ورکوي. کوم څوک چي دده اطاعت کوي په هغه به خپل دجعلي جنت سیل کوي اوڅوک چي دده مخالفت کوي هغه به په هغه خود ساخته جهنم کي اچوي. کوم څوک چي د ده په اورکي واچول سي د هغه اجر او ثواب یقیني دی اوگنا هونه به یي معاف سي. دي به گرځي اوراگرځي فسادونه به کوي اودمکې شریفي وخواته به راځي لیکن د ملائکو د حفاظت دوجهي به د مکې شریفي وحدودوته نه سي داخلیدلای دمکي شریفي څخه چي ناکامه سي بیابه دمدیني وطرفته مخکي اودجبل احد سره به خپل اوطاقونه جوړ کړي لیکن مدینې منورې ته به هم نه سي داخلیدلای بیا به په شام کي د فلسطین یوه ښارته ځي اومسلمانان به دحضرت مهدي عليه السلام په قیادت کي به بیت المقدس کي پر یوه غره باندي پاتېږي[152]

---

(١٥٢) وعن ابي هريرة رضي الله عنه عن النبي ﷺ قال يخرج الدجال على حمار أقمر اى شديد البياض ما بين اذنيه سبعون ذراعا مشكوة المصابيح ٥٤٩٣ رواه البيهقي فى كتاب البعث والنشور كما روى عن النواس بن سمعان رضي الله عنه قال ذكر رسول الله ﷺ الدجال ذات غداة ، على قوله .قلنا يارسول الله وما اسراعه فى الارض قال كالغيث استدبرته الريح . الخ رواه مسلم ٢٩٣٧ ـ ترمذي ٢٢٤٥ ـ ابن ماجه ٤٠٧٥)

(۳) **نزول عیسی** عليه السلام: هر کله چي دا محا صره (بند والی) اوږده سي نو حضرت امام مهدي عليه السلام به د دجال سره دجنگ فیصله وکي دجنگ لپاره صفونه جوړ سي. او دواړه لښکره به دجنگ لپاره تیار سي په دي وخت کښي به یو ورځ مسلمانان دسحار دلمانځه په جماعت سره د ادا کولو لپاره دریږي او امام مهدي عليه السلام به د امامت لپاره مخته کیږي نو به حضرت عیسی عليه السلام د دمشق دجامع مسجد پر مشرقي میناره باندي په داسي حال کي چي خپل دواړه لاسونه به یي د دوو ملائکو پر اوږو باندي ایښي وي او د آسمان څخه به راکښته سی (۱۵۳)
او د حضرت امام مهدي عليه السلام په امامت کي به لمونځ ادا کړي.

## دحضرت عیسی عليه السلام حلیه:

(۱۵۳) عن ابي امامة الباهلي رضي الله عنه قال: خطبنا رسول الله ﷺ ، الی قوله .وانه یخرج من خلة بین الشام والعراق فیقیث یمینا ویغیث شمالا .انه یبدا فیقول انانبي ولانبي بعدي ، ثم یثنی ویقول انا ربکم حتی تموتوا وانه اعور وان ربکم لیس باعور وانه مکتوب بین عینیه کافر یقراه کل مؤمن کاتب اوغیر کاتب وان من فتنة ان معه جنة ونارا فناره جنة وجنته نار، وانه لایبقی شیئ من الارض الا وطئه وظهر علیه الامکة ومدینة لایاتیهما من نقب من نقابهما الالقیته الملائکة بالسیف صلتة.الی قوله .فاین العرب یومئذ قال هم قلیل وجلهم بیت المقدس وامامهم رجل صالح فبینما امامهم قد تقدم یصلي بهم الصبح اذ نزل علیهم عیسی بن مریم . الخ (رواه ابو داؤد ٤٣١٦ـ سنن ابن ماجه ٤٠٧٧)

دحضرت عیسی علیه السلام قد درمیانه. رنګ به یې سور. اوسپین. او ویښتان بې تر ورځو پورې غوړیدلي وي او سیده او صفا او ځلیدونکي به وي لکه څرنګه چې دغسل وروسته ځلیږي (۱۵۴)

پر جسم مبارک باندې به بې سپکې د ژړ رنګ دوې جامې وي (۱۵۵)

غرض دادی چې حضرت عیسی علیه السلام به دلاس په اشاره سره وفرمايي چې زما او د دجال له منځ څخه لیرې سې. دحضرت عیسی علیه السلام په ساه کې به داسې تاثیر وي چې کوم کافر ته چې د ده ساه ور ورسیږي هغه به فورا مړ کیږي.

او ترکومه ځایه چې د ده سترګې مبارکې دید کوي تر هغه ځایه پورې به د ده ساه هم رسیږي.

---

(۱۵۴) قال تعالی: وانه لعلم للساعة (زخرف، ۶۱) وقال تعالی وان من اهلی الکتاب الا لیؤمنن به قبل موته، وعن النواس بن سمعان فی حدیث طویل، الی قوله، فبینما هو کذلک اذبعث الله المسیح بن مریم فینزل عند المنار البیضاء الشرقي بدمشق بین مهرو ذبین واذعا کفیه علی اجنحة ملکین اذاطاراسه قذر واذا رفع تحدرمنه جمان کالولو، فلا یحل لکافر یجد ریح نفسه الامات ونفسه ینتهی حیث ینتهي طرفه فیطلبه حتی یدرکه باب لدفیقتله: الحدیث (رواه مسلم وغیره بحواله مذکوره)

(۱۵۵) عن ابي هریرة ان النبي ﷺ قال لیس بیني وبینه نبي یعني عیسی وانه نازل فاذا رایتوه فاعرفوه رجل مربوع الی الحمرة والبیاض بین ممصرتین کان راسه یقطر وان لم یصبه بلل، الحدیث (رواه ابو داؤد ۴۳۲۴)

دجال چې هر کله حضرت عيسی ﷺ ووينې داسې به ويلې لکه څرنګه چې مالګه په ابو کښې ويلې ږي[١٥٦]

اوبيا به دجال دتيښتې کوشش کوي حضرت عيسی ﷺ به په هغه پسې وي پر باب لد باندې به دجال مړ کړي کوم چې په دمشق کې (شام) د يو محلې نوم دی[١٥٧]

ددجال دمرګ وروسته به مسلمانان دهغه دلښکر يو يوسړي تلاشوي اوقتل کوي به يې هيڅ يهودي ته به په هيڅ يو ځای کې دپناه ځا ی نه وي تر داسې وخته پورې که چيرې يو يهودي تر يو درختې يا ډبرې لاندې پناه واخلې نو هغه ډبره او هغه درخته به نعرې وهي چې دا کافر دی[١٥٨]

د هغه وروسته به خلګ د مځکې پر مخ باندې په امن و امان او په ارامه او سکون سره اوسيږي او امام مهدي ﷺ به وفات سي

(١٥٦) فی رواية النواس بن سمعان: بين مهروذتين مثنی مهروذة بالذال المعجمة ای ينزل فی حليتين فيهما صفرة خفيفة (هامش التصريح لابي فتاح ابي غدة ص ـ ٣٦)

(١٥٧) عن ابي هريرة ﷺ قال قال النبي ﷺ لاتقوم الساعة حتی تنزل الروم بالاعماق اوبدابق ، الی قوله ،فبينما هم يعدون للقتال يسوون الصفوف اذا اقيمت الصلوة فينزل عيسی بن مريم فامهم فاذا رآه عدو الله ذاب كما يذوب الملح فلو تركه لانذاب حتی يهلک ، الخ الحديث (رواه مسلم: ٢٨٩٧)

(١٥٨) كما روي ابن ماجة عن ابي امامه البا هلي ، حديث: ٤٠٧٧، وفی ابي داوٗد عن النواس بن سمعان الكلابي ، الحديث: ٤٣٢١)

### (۴) ياجوج ماجوج:

يو ورځ به وحضرت عيسى عليه السلام ته د الله تعالى له طرفه څخه حکم کيږي چي دى مسلمانان وکوه طور ته بوزي، او حضرت عيسى عليه السلام به هم دارنگه وکي. د دي وروسته به د ياجوج او ماجوج ديوال مات سي، او دوى به د خپل ځايو څخه را ووزي او په مځکه کي به تباهي جوړه کړي پر کومو اوبو باندي چي راسي هغه به ټوله وڅيښي او ختم به يي کړي[۱۵۹]

**سوال**: يا جوج او ما جوج څه دى؟

**ځواب**: ياجوج او ما جوج ديو فسادي قوم نوم دى[۱۶۰] کوم چي د يافث ابن نوح د نسل څخه دي[۱۶۱]

(۱۵۹) عن ابي امامة الباهلي عن النبي ﷺ (فى حديث طويل) فاذا انصرف قال عيسى عليه السلام افتحوا الباب فيفتح ورائه دجال ومعه سبعون الف يهودي كلهم ذوسيف محلي وساج فاذا نظر اليه الدجال ذاب كما يذوب الملح فى الماء وينطلق هاربا ويقول عيسى ان لي فيک ضربة لن تسبقني بها فيدركه عند باب اللد الشرقي فيقتله فيهزم الله اليهود فلا يبقى شئ مما خلق الله يتواري به يهودي الا انطق الله ذلک الشئ، الحديث (ابوداؤد ۴۳۲۱_ ابن ماجه ۴۰۷۷)

(۱۶۰) قال تعالى: حتى اذا فتحت ياجوج وماجوج وهم من كل حدب ينسلون (الانبياء ۹۶) عن النواس بن سمعان فى حديث طويل فبينماهم كذلک اذا اوحى الله عيسى عليه السلام انى قد اخرجت عباد الى لايدان لاحد بقتالهم فحرز عبادي الى الطور ويبعث الله ياجوج وماجوج وهم من كل حدب ينسلون الحديث (مسلم ۲۹۳۷_ ابوداؤد ۴۳۲۱_ ترمذي ۲۲۴۵_ ابن ماجه ۴۹۷۵_ احمد ۴، ۱۸۱)

(۱۶۱) قال تعالى: قالوا ياذالقرنين ان ياجوج وماجوج مفسدون فى الارض فهل نجعل لک خرجا على ان تجعل بيننا وبينهم سدا (الكهف ۹۴)

ذوالقرنين د خلگو د حفاظت لپاره او خلگ د دوي د فساد او قتل وغارت څخه د ساتلو لپاره د دوو غرو تر مابين د اوسپني يو ديوال جوړ کړي او د دوی لاري بي ورېندې کړي د دی ديوال له سببه خلگ د دوی د فساد اوغارت څخه محفوظه سوه[۱۶۲]

دا مضبوط ديوال اوس هم موجود دی قيامت ته نژدي به دا ديوال د الله تعالى په حکم سره مات سي[۱۶۳]

غرض دا دی چي دا قوم به د ديوال ماتيدو وروسته دمځکي پرهره حصه باندي وغوړيږي، او ډيره سخته تباهي اوبربادي به وکړي آخر به حضرت عيسى عليه السلام دياجوج او ماجوج لپاره ښرا وکړي، او الله تعالى به دا قوم په يوه ناجوړي باندي اخته کړي او د هغي ناجوړې څخه به ټول مړه سي د هغه وروسته به حضرت عيسى عليه السلام او مسلمانان ومځکي ته راسي، اومځکه به د ياجوج وماجوج په لښو باندي لړلي وي. بيا به الله تعالى داسي مرغان راواستوي چي اوږدې غاړي به ئي وي

(۱۶۲) قال ابن كثير (ياجوج وماجوج) قد قدمنا انهم من سلالة ادم عليه السلام بل هم من نسل نوح ايضا من اولاد يافث. الخ (تفسير ابن كثير، ۳: ۱۰۴)

(۱۶۳) قال تعالى آتوني زبر الحديد حتى اذا ساوى بين الصدفين قال انفخوا حتى اذا جعله نارا قال آتوني افرغ عليه قطرا فما اسطاعوا ان يظهروه وما استطاع له نقبا (الكهف ۹۶ ۹۷)

او دا د ياجوج او ماجوج لښونه به پورته کوي په کوم ځاى کي چي د الله تعالى خوښه وي هلته به ئي غورځوي بيا به يو باران وسي او په هغه سره به ځمکه بالکل صفا سي (۱۶۴)

د هغه وروسته به د ځمکي پر سر باندي خاص خير وي دښمنياني اوغلاوي اونور ټول منکرات به ختم سي. د مسلمانانو ولاس ته به بي انتها مال اودولت راسي د زهر والا وو حيواناتو زهر به د دوي څخه وايستل سي. اوکشنيان به د مارانو سره سات تيروي. او درندگان به هم بي ضرره سي يو انار به دومره غټ وي چي پوره يو جماعت به يي خوري، غرض دادي چي په دي وخت کي به ژوند ډير مزه دار وي او د خير او برکت دا زمانه به اوه کاله وي (۱۶۵)

(۱۶۴) عن ابي هريرة عن رسول الله ﷺ قال، ان ياجوج وماجوج ليحفرون السد كل يوم حتى اذا كادوا يرون شعاع الشمس قال الذي عليهم ارجعوا فستحفرونه غدا فيعودون اليه كاشد ماكان حتى اذا بلغت مدتهم واتزاد الله ان يبعثهم على الناس حفروا حتى اذا كادوا يرون شعاع الشمس قال الذي عليهم ارجعوا فستحفرونه غدا ان شاء الله فيستثنى فيعودون اليه وهو كهيئته حين تركوه فيحفرونه ويخروجون على الناس فينشفون المياه، الخ (تفسير ابن كثير، ۳:۱۰۴، ۱۰۵)

(۱۶۵) قال ابن كثير. فيدعوا عليهم عيسى بن مريم ﷺ فيقول. اللهم لاطاقة لنا وبد لنا بهم. فسلط الله عليهم دودا يقال له النغف فيفرس رقابهم ويبعث الله عليهم طيرا تاخذهم بمناقيرها فتلقيهم فى البحر ويبعث الله عينا يقال لها الحياة يطهر الله الارض وينبتها حتى ان الرمانة ليشبع منها السكن. قيل. وماالسكن يا كعب؛ قال. اهل البيت (صحيح الاخبار ابن كثير. ۳: ۱۹۶)

بيا به حضرت عيسى عليه السلام وفات سي. اومسلمانان به د ده د جنازي لمونځ ورکړي او دي به دفن کړي [۱۶۶]

**(۵) ذکر دخان:**

يوه ورځ به پر آسمان باندي يو خاص دود وغوړېږي اوبيا به ومځکي ته راشوه سي.

ددي دود له سببه به مسلمانانو ته زکام رنګه معلوم سي. ليکن دکافرانو سرونه به داسي سي لکه پر اور باندي چي کباب سوي وي. دا دود به څلوېښت ورځي وي هر کله چي دا دود ختميږي نو به دلوي اختر ورځ نژدي وي [۱۶۷]

**(۶) لمر به دمغرب له خوا څخه راوخېژي**

دذي الحجي د لسم تاريخ شپه ډېره اوږده وي، تر داسي وخته چي کشنيان به د ډيره خوبه څخه په خوب ستړي سي خلګ به ډير فريشانه او خوا بدي سي، اوحيوانان به ناري جوړي کړي، ليکن نه به سحار کيږي ترداسي وخته چي

(۱۶۶) کما رواه مسلم عن النواس بن سمعان فی حديث طويل المذکور آنفا وکما رواه ابو داؤد عن ابي امامة الباهلي في حديث طويل (ابوداؤد: ۴۳۲۲_ ابن ماجه: ۴۰۷۷)

(۱۶۷) عن ابي هريرة رضی الله عنه ان النبي صلی الله علیه وسلم قال: ليس بيني وبينه نبي يعني عيسى (الى قوله) فيمکث فى الارض اربعين سنة ثم يتوفى فيصلى عليه المسلمون (ابو داؤد ۴۳۲۴_ احمد: ۴۳۷: ۲)

دا شپه د دری یا څلورو شپو برابره سي نو به لمر د مغرب له طرفه څخه په لږ روښنایي سره راوخیژي او دومره به راپورته سي لکه څومره چي د غرمې څخه مخکي وي اوبیا به بیرته د مغرب پر خواباندي ډوب سي

د دي وروسته به بیا د خپل عام عادت مطابق د مشرق دخوا څخه راخیژي د مغرب له خوا څخه د لمر راختو وروسته به د توبي دروازه بنده سي، کافران به د کفره څخه اوگناه گاران به د گناه څخه توبه کوي. لیکن دا توبه به مقبوله نه وي (۱۶۸)

## (۷) دابة الارض

د دي وروسته به په مکه معظمه کي د صفا غر د زلزلي څخه وچوي او د هغه څخه به یوه عجیبه نابلده او یو نادره شکل لرونکی یو حیوان را ووزي.

---

(۱۶۸) قال تعالی فارتقب یوم تاتي السماء بدخان مبین (دخان ۱۰) وروی ابن جریر فی تفسیر هذه الایة قال الصحابي الجلیل عبد الله بن عمر ﷺ یخرج الدخان فیاخذ المومن کهیئته الزکام ویدخل فی مسامع الکافر والمنافق حتی یکون کالراس الحنیذ (ای کالراس المشوي علی الجمر) (تفسیر ابن جریر، ۱۳: ۱۱۳) وروی الطبراني عن حذیفة ﷺ ان من اشراط الساعة دخانا یملی مابین المشرق والمغرب یمکث فی الارض اربعون یوما (الاذاعة لما کان یکون بین یدي الساعة ص. ۱۷۴)

دکوم چي به سر د غوايي په شان وي سترگي به يې د خنزير رنگه وي. غوږونه به يي د فيل په شان غاړه به ئي دشترمرغ رنگه وي خيگر به يې دزمري رنگه وي.
او د جسم رنگ به يې د پړانگ رنگه وي او لکي به يې دپسه پشان وي او پښي به يې د اوښ رنگه وي او د هرو دووپښو تر منځ به يې فا صله دوولس (۱۲) گزه وي

دحضرت موسیٰ عليه السلام لکړه اودحضرت سليمان عليه السلام گتمي به ورسره وي دا به د هر مسلمان اوکافر پر تندي باندي يو نښاني لگوي، دا يو عجيبه حيوان به پر ټوله دنيا گرځي، او د خلگو سره به خبري کوي چي هر کله دا حيوان کافران هم ويني نو ايمان به راوړي ليکن د دوی دا ايمان به بې فائدې وي (۱۶۹)

(۸) **(د يمن اور)**

(۱۶۹) قال تعالى: يوم ياتي بعض آيات ربک لاينفع نفسا ايمانها لم تكن آمنت من قبل اوكسبت فى ايمانها خيرا (الانعام ۱۵۸)، وعن ابي هريرة ان رسول الله ﷺ قال لاتقوم الساعة حتى تقتل فئتان عظيمتان (الى قوله) وحتى تطلع الشمس من مغربها فاذا طلعت ورآها الناس آمنوا جميعا فذلک حين لاينفع نفس ايمانها" الخ (البخاري ۷۱۲۱_ مسلم، ۲ ۳۹۰_ احمد. ۳ ۹۵_ الدر المنثور، ۶ ۵۱۲)، وقال فى الاشاعة روى ابن مردويه عن حذيفة رضي الله عنه قال سألت رسول الله ﷺ ما آية طلوع الشمس من مغربها، قال تطول قدر ثلث ليلا وفى رواية البيهقي عن عبدالله بن عمرو بلفظ قدر ليلتين اوثلاث " الخ (بحول الاشاعة للبرزنجي. ص- ۱۶۶)

بیابه یو اور د یمن د خوا څخه پیداسي کوم چي به خلګ دمحشر (شام هیواد) ته بیایي. قرآن کریم به د انسانانو د ځیګرو او د قرآن مجیدو څخه پورته سي[۱۷۰]

**(۹) د مسلمانانو مرګ:**

یو څو عمر وروسته به یوه ډیره ښه هوا وچلیږي، کوم چي به د ټولو مسلمانانو روحونه قبض کړي. اوهیڅ یو مسلمان به پر دنیا نه سي پاته په دنیا کي به صرف د کفارو اوبد کارانو عملونه کېږي حکومت به د حبشي دکافرانو وي کوم چي به خانه کعبه هم شهیده کړي، دري څلور کلونه به په داسي حالت کي تیرسي، چي نابېره به د جمعي په ورځ پرلسم د محرم الحرام

---

(۱۷۰) قال تعالی: اخرجنا لهم دابة من الارض تطلمهم ان الناس کانوا بآیاتنا لایوقنون (النحل ۸۶) وقال ابن جریر عن ابي الزبیر انه وصف الدابة فقال: راسها راس ثور وعینها عین خنزیر واذنها اذن فیل وقنها قرن ایل وعنقها عنق نعامة وصدرها صدر اسد ولونها لون نمر وخاصرتها خاصرة هر و ذنبها ذنب کبش وقوائمها قوائم بعیر بین کل منفصلین اثناعشر ذراعا تخرج معها عصا موسی علیه السلام وخاتم سلیمان علیه السلام فلا یبقی مومن الا نکت فی وجهه نکتة سواء بخاتم سلیمان فتفشو تلک النکتة حتی یسودبها وجهه حتی ان الناس یتبایعون فی الاسواق بکم ذایا مومن بکم ذایا کافر (ابن کثیر، ۳: ۱۷۶)

حضرت اسرافیل علیه السلام شپیلي پوه کړي او پر دي بدو خلګو باندي به قیامت راسي[۱۷۱]

(۱۰) **حشر او نشر:**

**سوال:** حشر ونشر او عالم آخرت څه دی؟

**ځواب:** د اول وار شپیلي پوکلو څخه به ټوله عالم نیست اونابود سي ترداسي وخته چي خپله پر حضرت اسرافیل علیه السلام باندي به هم موت راسي اوداﷲ تعالی څخه ماسوا ټول شیان به فناسي. بیا دوهمه پله چي شپیلي پوه کړل سي نو به ټوله عالم دوهم وار ژوندی سي مړي به په قبروکي ژوندي سي او د قبرو څخه به را ووزي، او ټوله به سره جمع سي او د حشر ومیدان ته به روان وي داغه ژوندي حشر او نشر یا د مرګه وروسته ژوندي کیدل دي[۱۷۲]

**سوال:** د عالم اخرت او د میدان حشر څه حالتونه بیان کړي؟

---

(۱۷۱) عن حذیفة بن اسید الغفاري قال: اطلع علینا النبي ﷺ ونحن نتذاکر . الی قوله: وآخر ذلک نار تخرج من یمن تطرد الناس الی محشرهم . الخ الحدیث (مسلم بشرح ابي: ۲۹۰۱)

(۱۷۲) عن النواس بن سمعان رضی الله عنه فی حدیث طویل . فبینماهم کذلک اذ بعث الله ریحا طیبة فتاخذهم من تحت آباطهم فتقبض روح کل مومن وکل مسلم ویبقی شرار الناس یتهارجون فیها تهارج الحمر فعلیهم تقوم الساعة (مسلم ۲۱۳۷_ ابن ماجه ۴۰۷۵_ ترمذي ۲۲۴۵)

**څواب**: د دوهمي شپيلي څخه چي هر کله ټول عالم بيا بيداره سي، او مړي ژوندي سي[۱۷۳]

نو به لمر پر پاو بالا يوه نيزه مقدار باندي راکښته سي اوخلګ به د خپلو اعمالو په نسبت سره په خولو کي ډوب وي[۱۷۴]

څه خلګ به تر بجلکو پوري په خولو کي ډوب وي بعض به تر زنګنو پوري ډوب وي څه به بيا تر نو پوري اوڅه به بيا تر خپلو خلو پوري په خولو کي ډوب وي، په دي ورځ به انسان بيله څه نشي نشه وي[۱۷۵]

ټوله انسانان به د حساب اوکتاب لپاره د قيامت پر يو ميدان باندي سره راجمع وي زموږ د خوږ نبي ﷺ په سفارش باندي به حساب اوکتاب شروع کيږي[۱۷۶]

---

(۱۷۳) قال تعالى: فاذا نفخ فى الصور نفخة واحدة وحملت الارض والجبال فدكتا دكة واحدة (الحاقة ۱۳: ۱۴) وقال تعالى: ونفخ فى الصور فصعق من فى السموات والارض الامن شاء الله ثم نفخ فيه اخرى فاذا هم قيام ينظرون (الزمر: ۶۷) وقال تعالى: ثم انكم يوم القيمة تبعثون (المومنون: ۱۶) وقال تعالى: ويبقى وجه ربك ذو الجلال والاكرام (الرحمن: ۲۷)

(۱۷۴) قال تعالى: ثم نفخ فيه اخرى فاذاهم قيام ينظرون (الزمر ۶۸)

(۱۷۵) عن المقداد قال سمعت رسول الله ﷺ يقول: تدني الشمس يوم القيامة من الخلق حتى تكون منهم كمقدار ميل فيكون الناس على قدر اعمالهم فى العرق فمنهم من يكون الى كعبيه الحديث (رواه مسلم: ۲۸۶۴)

(۱۷۶) قال تعالى: وترى الناس سكرى وماهم بسكارى الاية (الحج ۲)

و دا حساب او کتاب به د ټولو څخه کېږي د اعمالو وزن تول به کیږي، او د اعمالو د تللو لپاره به میزان عدل یعني د انصاف ترازو اېښول کېږي دکوم چي په راسته پله کي به ښه عملونه، او په چپه پله کي به بدعملونه اېښول کېږي (۱۷۷).
د چا چي د نیکو اعمالو پله درنه سي نو هغه ته به په راسته لاس عمل نامه ورکړه سي، او د چاچي د گنهو نو پله درنه سي هغه ته به په چپه لاس عملنامه ورکړه سي.
نیکان انسانان به دخوشحالي څخه خپل عمل نامه خلگو ته ښکاره کوي او بد کاره او گناه گاره به په ډیر حسرت او افسوس سره گرځي (۱۷۸).
او بیا به ټوله د پل صراط څخه تیریږي.

**پل صراط:**

**سوال:** پل صراط څه شي دی؟

**ځواب:** دا یو پل دی، کوم چي د ویښته څخه زیات باریک

---

(۱۷۷) کما رواه انس بن مالک فی حدیث الشفاعة مسلم. ۲۴۵ ۲_ ابن ماجه ۷. ۴۳_۴۳۱۷

(۱۷۸) قال تعالی: ونضع الموازین القسط لیوم القیامة فلا تظلم نفس شیئا وان کان مثقال حبة من خردل اتینا بها وکفی بنا حاسبین (الانبیاء ۴۷).

(نږی) اوتر توري زيات تيره دي[۱۷۹].

اوپر جهنم باندي پروت دی، وټولو انسانانو ته به پر پل صراط باندي دتيريدو حکم ورکړه سي[۱۸۰].

نيکان خلګ به پر هغه پل په ډيره سلامتي سره تير سي اوجنت ته به ورسيږي.

اوبد کاره اوکفار به پردي پل باندي ودوږخ ته شوه کيږي او ودوږخ ته به ورلويږي.[۱۸۱]

**سوال**: آيا ګناه ګاره مسلمان هم وجهنم ته ورلويږي؟

**ځواب**: هو! هغه مسلمانان چي په دنيا کي ګناه وي کړي وي اوپه رشتيا سره يي توبه نه وي کښلي نو د خداوندي قانون مطابق به هغه په جهنم کي د خپلو ګنهونو په سزا ورسيږي اوپاک اوصاف به سي بالآخر به جنت ته ولاړسي.

هو! اوکه الله تعالی پخپل رحمت سره دوی معاف کړي نو

---

(۱۷۹) قال تعالی: فاما من اوتي کتابه بيمينه فقول هاوم قروا کتابيه اني ظننت اني ملاق حسابيه فهو في عيشة راضية واما من اوتي کتابه بشماله فيقول ياليتني لم اوت کتابيه ولم ادرما حسابيه ياليتها القاضية (الحاقة ۲۵، ۲۶، ۲۷).

(۱۸۰) قال في جمع الفوائد . وفي رواية قال ابو سعيد بلغني ان الجسر ادق من الشعر واحد من السيف (للشيخين والنسائي) (جمع الفوائد ۳۳_۲: ۱۰۰۰۲ص_ ۸۳۸ ج ۲

(۱۸۱) قال تعالی: وان منکم الا واردها کان علی ربک حتما مقضيا (مريم ۷۱).

دوی به هم سیده وجنت ته داخل کړه سي[۱۸۲]

**پر تقدیر ایمان**

**سوال** د تقدیر حقیقت څه دی؟

**ځواب** د کائناتو د هر شي پیدا ایښت او مرګ د هغه ښه او بد عملونه او انجام غرض داچي کوم شی چي په عالم کي ښه او بد څه کیږي دا ټوله الله تعالی د هغه دواقع کیدلو څخه مخکي همیشه پیژني. او ورته معلوم دی او الله تعالی پخپل علم کي هغه یوځای لیکلي دی د هغه نوم تقدیر دی. د دي تقدیر خلاف هیڅ یو بلګ هم حرکت نه سي کولای، که نه (العیاذ بالله) د الله تعالی د علم غلطیدل به لازم سي کوم چي محال او ناممکن دی[۱۸۳]

(۱۸۲) قال تعالی ثم ننجی الذین اتقوا ونذر الظالمین فیها جثیا (مریم ۷۲)

(۱۸۳) وقوله (ثم ننجی الذین اتقوا) ای اذامر الخلائق کلهم علی نار وسقط فیها من سقط من الکفار والعصاة ذوالمعاصي بحسبهم نجی الله تعالی المومنین مالمتقین بحسب اعمالهم التي کانت فی الدنیا ثم یشفعون في اصحاب الکبائر من المومنین فیشفع الملائکة والنبیون والمومنون فیخرجون خلقا کثیرا قد اکلتهم النار الا دارات وجوههم وهي مواضع السجود (الی قوله) حتی یخرجون من کان فی قلبه ادنی ادنی ادنی مثقال ذرة من ایمان ثم یخرج الله من النار من قال یوما من الدهر لااله الا الله وان لم یعمل خیرا قط ولایبقی فی النار الا من وجب علیه الخلود کما وردت بذلک الاحادیث الصحیحة عن رسول الله ﷺ ولهذا قال تعالی (ثم ننجی الذین اتقوا ونذر الظالمین فیه جثیا (تفسیر ابن کثیر. ۱۳۳، ۱۳۴ ۳)

پر تقدير باندي ايمان راوړل هم د هر مومن لپاره ضروري دی، تر څه وخته چې پر تقدير باندي ايمان نه وي هغه مومن نه سي کيدلای[۱۸۴]

دالله تعالی رسولﷺ د تقدير په باره کي د زيات بحث او مباحثي کولو څخه امت منع کړي دی

له دي سببه د تقدير په باره کي بحث اومباحثه کول نه دي پکار[۱۸۵]

جزء اول د تعليم العقائد پوره سو د الله تعالی په توفيق او مدد سره وروسته به جزء ثاني وي کوم چي به د اسلام پرفرقو باندي مشتمل وي او پر هغو باندي بحث کول . او معرفت د هغه فرقو چي ناجيه دي پر الله توکل وي او د ده څخه سوال د قبلېدو دی. ابو امامة طاهر محمود

(۱۸۴) قال تعالى انا كل شئ خلقناه بقدر (القمر ۴۹) وقال تعالى وكل شئ عنده بمقدار (الرعد ۸) وعن رسول اللهﷺ يقول ان اول ما خلق الله القلم . فقال له اكتب فجرى بما هو كائن الى الابد (الترمذي ۲۳۳۱)

(۱۸۵) كما في حديث جبرئيل المذكور

(۱۸۶) عن ابي هريرة رضى الله تعالى عنه قال خرج علينا رسول الله ونحن نتنازع فى القدر فغضب حتى احمر وجهه حتى كاانما فقى من وجنتيه ارمان فقال ابهذا امرتم ام بهذا ارسلت اليكم؟ انما هلك من كان قبلكم حين تنازعوا فى هذا الامر عزمت عليكم عزمت عليكم الاتنازعوا فيه (ترمذي ۳۸۲۱)

نحمده ونصلي علی رسوله الکریم

**اما بعد**

صحیح عقیده هغه بنیاد او اساس دی پر کوم باندې چې دانسان د فلاح او نجات دارو مدار دی

دعقیدې د صحیح کیدو څخه پرته د اعمال صالحه وو هیڅ قدر او قیمت نه دی

همداغه وجه ده چې قرآن کریم هم پر عقیده باندې ډیر زور ورکړي. ترداسي وخته پورې چې الله تعالی فرمايي ﴿ان الله لایغفر ان یشرک به ویغفر مادون ذالک لمن یشاء﴾

**ترجمه** الله تعالی په اعمالو کښې چې کومې نیمګړتیاوې وي هغه کوم چاته چې دده خوښه وي معافه وي مګر شرک (یعني دعقیدې نیمګړتیا اونقصان) دمعاف کیدلو څه ګنجائش نسته

د دې آیت کریمه څخه په ډیر ښه اندازه سره دا **معلومیږي** چې دعقیدې اصلاح اوصحیح کیدل په اسلام کې څومره د اهتمام اوغمخوردنې شی دی.

همداغه وجه ده چې په هر دور کې باطلو قوتونو دمسلمانانو پر عقائدو باندې دتیرې کولو هر ممکن

کوششونه کړي دي

الله تعالى دي جزاء خیر ورکړي داسلام وعلماووته چي دوی په هر دور کښي ددي باذلو قوتونو دمکر اوفریب پرده ورڅیري کړې ده

اوعقائد یې دهر قسم ګډودي اوشک اوشبهاتو څخه دپاک اوصاف لرلو کار په ښه توګه سره سرته رسولی دی

لکه څرنګه چي پر دي موضوع باندي په هر دور کي کتابونه لیکل سوي دي . له هم دي کبله دیني مدرسي (چي ددوی دنورو مقصدونو سره سره یو اهم مقصد دمسلمانانو د عقائدو او افکارو صحیح کیدل او حفاظت هم دی) په دي مدرسو کي هم دعقائدو دتعلیم اوښوني یو خاص اهتمام کول کېږي او په ډیر تفصیل اوتحقیق سره دعقائدو تعلیم ورکول کېږي. لیکن خو عموما په مدرسو کي داموضوع په لوړو درجو کي ورته ویل کېږي . په لاندي درجو کښي پر عقائدو باندي څه خاص قابل ذکر کتاب عموما نه ورته ویل کیږي دمدرسه اشرف العلوم بیت المکرم کورنګي چي هر کله شروع وسوه نو هلته په نصاب تعلیم کي دا د عقائدو موضوع په لاندي درجو کي هم په

ډېر اهتمام سره د ورته ویلو فیصله وکړل سوه
خو په ابتدایي درجو کښې د معیار یو خاص کتاب هغه وخت نه وو څرنګه چې زما ګران زوی مولوي طاهر محمود سلمه الله تعالی وزاده علما وعملا

د درمیاني درجو د طالبانو لپاره د ایمان مفصل تشریح په داسي اندازه کي ورښوولي وه چي د هغو په ضمن کي دضروري عقائدو مناسبه تشریح او د فاسدو عقائدو په ګوته کولو سره سره د هغو رد هم په سپکه اندازه سره کړي وو.

هرکله چي ده د دي د چاپولو اراده وکړه نو یي دا تشریح دطالبانو دآساني لپاره سوال او ځواب کړه او بیا یي دانوشته دمستندو اوکتبحرو علماء کرامو په مخ کي د اصلاح په غرض پیش کړه او د هغو تصدیق او توثیق یي هم ترلاسه کړ.

څرنګه چي دا نوشته جناب مولانا مفتي دارالعلوم کراچي جناب مفتي محمد عبد الله برمي صاحب مدظلهم العالی اومولانا عاشق الهي صاحب دامت برکاتهم العالیه خوبالاستیعاب مطالعه کړا و د هغه سره یي اصلاح هم وکړه.

د دي حضراتو د اصلاح وروسته دا كتاب ددي قابل
وگرځيدي چي چاپ دي سي ، اومدرسو په نصاب كښي
دي داخل سي ، الله تعالی دي دده دامحنت قبول كړي
اودده لپاره دي ذخيره دآخرت وگرځوي، آمين

سحبان محمود رحمه الله
۲۷ـ ۲ـ ۱۹ـ هجري
جامعه دارالعلوم كراچي

## د مصنف عرض

نحمده ونصلي على رسوله الكريم

**اما بعد:**

دعقائدو اهميت دمسلمو خبرو څخه دی. ليكن زموږ په
ټولنه كښي چي څرنگه دعقائدو په اهتمام سره زده كولو
ضرورت دی عموما هغسي تعليم اوتعلم نه ليدل كيږي.
لكه څرنگه چي په ابتدايي درجو كي دعقائدو پر موضوع
باندي څه قابل ذكر كتاب په نصاب كښي داخل نسته. خو
بيا هم په درجه سادسه كښي شرح عقائد خاص ددي
موضوع كتاب دی ليكن دهغه دويلو وروسته هم طالب
العلم ته دده په زمانه كښي پيداسوو باطلو فرقو او جماعتو

او د هغوی د نظریاتو په باره کي خاص معلومات نه حاصلیږي په کومه زمانه کي چي احقر په خپل مادر علمي دارلعلوم کراچي کي مدرس وم هغه وخت هم ما د خپلو استاذانو په خدمت کي د دي نیمگړتیا اوکمي تذکره وکړه[۱] او دا هلیه مي ورښخه وکړه چي دا موضوع دي دمتوسطي ښخه بیا تریو لوی درجاتو پوري مسلسله په نصاب کي شامله سي لیکن مشکل دا وو چي پر دي موضوع باندي نصاب موجود نه وو کوم چي په باقاعده تسلسل باندي شامل کړه سي کوم چي دا تجویز د متوسطي په دریم کال کي د تعلیمات اسلام د عقائدو حصه د شامل کیدو ښخه مخته نه ولاړه وروسته بیا دغه حصه هم د طالب علمانو د استعداد ښخه د لوړ والي په وجه د نصاب ښخه وایستل سوه. بیا هر کله چي پر احقر باندي په مدرسه اشرف العلوم

(۱) زما په نزد د شرح عقائد څخه ښکه د عقائدو پوره پوره معلومات نه حاصلیږي ولي چي شرح عقائد په حکمتو او منطقو ډک دی. او هر کله چي د عقائدو بحث ته ورسیږي چي عذاب قبر حق دی، نو طالبان او علماء ووایي بسته شرح عقائد تر مقام درس پوري ورسیدی، او هغه اصل مقصد چي اوس شروع سو هغه نه وایي، زه نه پوهیږم چي تر عذاب قبر پوري د دي مقام درس تعین چا وکړی؛ کیدای سي دا یو سازش وي چي زموږ د اسلافو توجه یي هم راخرابه کړه

احقر فضل الحق حقاني

کي دتدریسي ذمه داریانو سره سره دانتظام مسولیت هم وروسپارل سو. نو احقر په اول فرصیت کي پردي موضوع باندي مرحله وار په کرار کرار سره په نصاب کي د شاملولو همت وکړي .او د دي مقولي له کبله ((رافکر خو دي کړه اوس یې نو پوره هم کړه)) په مصداق سره ټولو استاذانو دا درس زما احقر پر ذمه باندي را وسپاری. پردي ځای باندي احقر د متوسطي د طالبانو د استعداد مطابق د ایمان مفصل وضاحت په داسي اندازه کي وکړي چي د هغو داستعداد مطابق ضمنها د موجوده زماني ټو باطلو جماعتو او فرقو اجمالي جاج واخست، او د هغو پر باطلو عقائدو باندي ردونه هم د دوی مخته راغله.

زما احقر دا درس بعض طالبانو لیکلی هم وو.

او د هغه فوټو کاپي د وروسته کلونو لپاره په نصاب کي شامله سوه. بیا د څه دوستانو دا غوښتنه شروع سوه چي د ثانویه عامة د طالبانو لپاره هم څه کارکول پکار دی.

کوم چي د هغو لپاره بیا د دغي حصي د دلائلو باقاعده دیادولو تجویز (نظر) راغي نو احقر د دوستانو د دي اصرار له وجي د دي دلائل هم جمع کړه، او د

طالبانو د آساني لپاره مي د ايمان مفصل تشريح او وضاحت سوالا او جوابا کړه

ليکن څرنګه چي دا موضوع ډيره مهمه موضوع ده پرکوم باندي چي د قلم پورته کولو لپاره علمي مهارت، د وسيع تدريسي تجربه څخه علاوه د خپلو اسلافو ديني رخ او مسلکي مزاج سره د بلدتيا ډير ضرورت دي، او دا ښکاره خبره ده چي احقر د دي ټولو فضائلو څخه خالي دی له دي کبله د دي د چاپيدلو اوشائع کولو څه اراده هم په زړه کي نه وه څو کاله وروسته د بعض ملګرو د همت لوړيدو په خاطر مي پردي شرط باندي د چاپولو اراده وسوه چي دا کتاب بايد حرفا حرفا د خپلو محترمو استاذانو ترنظر تيرکړه سي او اطمنان حاصل سي

څکه نو زما عزت مند استاذ حضرت مولانا مفتي عبد الروف سکهروي صاحب او د حضرت مولانا مفتي عبد الله صاحب دا مت برکاتهم په خدمت کي د پيشولو جرات وکړي او دوی محترمو په ډير شفقت سره د کار اخستلو سره د دي کتاب مکمله مطالعه وکړه اوزه يي په خپلو مفيدو مشورو سره ونازولم

او دې څخه علاوه يې په تحرير کې د ګرانو الفاظو اسانيدل هم وفرمايل. بيا احقر د دې کتاب مسوده د خپلې عمرې په سفر کې په کال ۱۴۱۹ کې د حضرت مولانا مفتي عاشق الهي مدظلهم په خدمت کې د اصلاح په غرض وړاندې کړې حضرت مفتي صاحب مدظلهم په يوه ناسته کې د پوره کتاب بالاستيعاب مطالعه وکړه او اصلاح يې هم وکړه او پخپلو قيمتي مشورو سره يې زه ونازولم، فجزاهم الله تعالى احسن الجزاء.د دې معتمدو او مشهورو علماء کرامو تر نظر د تيريدو وروسته اوس دا زما د زړه ارمان د دې قابل وګرځيدې چې چاپ کړل سي. د دې کتاب دوهمه حصه کوم چې د ثانويه خاصه د استعداد دطالبانو لپاره مرتب سوې ده هغه هم په اخيرو مرحلو کې ده په هغه حصه کې د اختلاف امت تاريخ، او د اختلاف اسباب، او د دې څخه علاوه د اوسني زمانې او د قديم زمانې د باطلو فرقو تعارف د هغوی عقائد او پر هغوی باندې د رد علاوه د اهل السنة والجماعت پيژندنه، د دوی علاماتې اونښانيانې او د دوی د عقائدو په تفصيل سره ذکر موجود دی. ومحترمو لوستونکو ته که چيرې په دې کتاب کې څه غلطې په نظر ورسي نو هغه يقينا زما د جهالت وجه

ده د خپلي سخا اوكرم له وجهي دي ما ناچيز په دې خبر كړي. د الله تعالى څخه دعا ده چي زما دا كشنى خدمت په خپل بارگاه كي قبول كړي او دا كتاب زما احقر او زما د والد صاحب لپاره دآخرت توښه وگرځوي آمين.

د هفتې په ورځ ۲۹ ذی الحجة د كال ۱۴۱۹ چي د دې كتاب مسوده د چاپېدلو لپاره چاپ ته تله په داغه ورځ حضرت شيخ الحديث مفتي سحبان محمود صاحب رحمة الله عليه كوم چي به ما همېشه مدظلهم ليكى نن هغه په رحمه الله ليكلو باندي زړه زخمي كېږي. او زړه د وينو په اوښكو سره ژاړي. او په قلم كي د ليكلو قوت نه سو پاته، موږ ټول يي په ژړا پرېښودلو او له دې دنيا څخه ولاړى (انا لله وانا اليه راجعون) حضرت له خپل وفات څخه دوې ورځي مخكي ددې كتاب لپاره خپل تقريظ او تصديق باندي د ستخط كړي و. خداى تعالى دي د ده لپاره دا كتاب صدقه جاريه وگرځوي آمين.

ابو امامة طاهر محمود ۳ محرم الحرام كال ۱۴۲۰ هجري
خادم طلبه اشرف العلوم كورنگي سيكټر **50 A** كراچي

## زموږ ځني نـــوي نشريات

تفسير ايوبی (۱۸) جلده پښتو

نكاح قدوری (۲) جلده پښتو

تعليم النساء پښتو

د ميرمنو سوغات پښتو

عقائد الاسلام پښتو

تعليم العقائد پښتو

سنت او بدعت پښتو

فضائل اعمال (۱) جلد پښتو

نور الايضاح (۳) جلده پښتو

بسم الله الرحمن الرحيم

دپښتو په تاريخ کښي د عقائدو پر بحث باندي مشتمله يو په زړه پوري کتاب، په کوم کښي چي د عقائدو بحث په پوره توگه، د عقائدو آثبات په دلائل عقليه او نقليه وو سره، او ورسره د نوو او زړو فلسفيانو او ملحدانو د أعتراضاتو ځوابونه

# عقائد الاسلام

**تاليف**

علامة العصر حضرت **مولانا محمد ادريس کانډهلوي** نور الله مرقده

مصنف تفسير معارف القرآن والكتب الكثيره

**پښتو ژباړه**

حضرت مولانا قاري محمد فضل الحق حقاني

استاد شعبه تجويد وقرائت

**خپرونکې اداره**

مكتبة القراءة والتجويد

کاسي روډ کوټه بلوچستان

د کوچني د تعليم پيل چي په ښه توگه سره وسي، نو دا د هغه په ذهن کي يو قسم نقش پرېږدي، مثلاً که کوچني ته په ابتدا کي د تجويد د لحاظ کولو سره سره قاعده وويل سي، نو هغه په رتلونکي کي د قرآن مجيد هر لفظ په تجويد سره ويلای سي، نو زموږ اداري په هر ډکر کي د مسلمانانو لپاره په کتابي شکل کي کوشش کړی دی تر څو مسلمانانو ته فائده ورسېږي، چي له هغو شاهکارو څخه يو

# نوراني قاعده

دا نوراني قاعده پر دوه قسمه ده يوه رنگينه ده يعني د هر رنگ ويونکی لفظ يې د قرائت له لحاظه په خپل رنگ کښي دی، دويم قسم يې ساده ده، په ښه کاغذ او ښه جلد کښي.

